# دنغمو په باغ کې

## د پیر محمد کاروان شعر او شاعري

## لطیف بهاند

۱۳۸۷

(شننه او سپړنه)

WWW.SAMSOOR.COM

د اژدهـــــا پر ژامه ژوند تېروو
د شپــبو زهر څه په خوند تېروو
زړونه مو ړنګ لکه مانۍ د کابل
عمر په تمـــه د اوربــند تېروو
لکه طوطیان وهو پنجرې په وزر
د آزادۍ په مینه بــند تـــېروو

۲۲۲-چنار خبرې کوي

منتظر ستا دګفتار دی شیدا بزم
چې بل امر شیدا نه کا بې قلقله

# کاظم خان شیدا

زه داسې تصور کوم چې شعر د طبیعت د سندریزو انګازو پژواک دی.هغه لمسوونکی، خوځوونکی او پارونکی پژواک چې د طبیعت د اضدادو د دایمي اخ وډب د پایلې، دخوږې پایلې نه زېږي.دغه پژواک هرڅوک احساسولی او اوریدلی نه شي.ددغه پژواک اوریدل داسې یو احساس ته اړتیا لري چې تر نه بیانیدونکې کچې پورې هغه احساس کړي او هغه واوریدلای شي.

د روسیې یو شعر پېژندونکی،ویکتور رشکولوفسکي،شعر دتورو او کلماتو پاڅون او او ښتون ګڼلای دی.

د پیرمحمد کاروان د شعر تر لوستلو دهر ځیرک لوستونکي د ښته پام ور اوړي چې دغه شاعر د الهام د ځان ورکې دنیاګۍ له لارې دخپلې ژبې د ښکلا یزې پانګې او دهغې د رازونو د راسپړلو هڅه کړې ده.نو ځکه هغه ته د کاظم خان شیدا دا وینا پر ځای ګڼو او وایو:

لطیف بهاند

انتظار ستا د ګفتار سخن فهمان دي
خاموش مه اوسه شيدا شرين سخنه
-شيدا

داسې برېښي چې کاروان ددې سخنفهمانو وينا اوري او دخپلې نازکخيالۍ په برکت او ملګرتيا وايي چې:

کاروانــــــه دخبرو له بيابانه کوچ په کار دی
را درومه چې دمستو سندرمارو منځ کې کېنو

زه خپله چې د کاروان شعر لولم،بياهم ماته دشعر او شعری کوډو په اړه دکاظم خان شيدا له ويناوو نه يوه وينا رايادېږي چې وايي:

چې تسخير د پريزاد کا په خبرو
د شيدا فکر کم نه دی تر افسونه

-شيدا

د کاروان شعر په غزلو کې غزل دی.هغه په شعر کې شعر ليکي.هغه خپله غزل دی.دی خپله پوښتنه کوي: ته پوه يې چې دا څنګه شو کاروان غزل غزل؟
ځواب دادی:
مست دې کړم،درود دې کړم،سرود دې کړم
عشـقـــــه زه ګـــونګی وم غزلبول دې کړم
دهغه د شعر انګازې او سندريز ترنم کولای شي په هر غره او کمره کې،په هره دره،دښته او شيله کې او دانسانی روح په هره کرونده کې،دنغمو زړې

وکړي.هغه نغمې چې انساني روح تسل کړي،هغه ونازوي او آرام او يا يې ولمسوي.

دکاروان خيال،ددغه خيال نه زېږنده شعر،هغه باريکي لري چې د پښتو دپخوانی او ننني شعر ټول دهغه منت داره کېږي.

خبره به رالنډه کړو او دا پوښتنه به وکړو چې په خپله دکاروان لپاره شعرڅه معنی لري؟

## دكاروان لپاره شعر

روح مې لوی ګړنګ دی دنغمو له ازانګو نه ډک
ښايی کوم غيبي لوی سندرمار ته مخامخ يمه

تر هرڅه دمخه شعر د کاروان لپاره مينه ده.دی شعر د معشوقې په نامه يادوی او وايي:

ته معشوقه هم لرې؟ !
ووايه نوم يې څه دی؟ !
ماوې زما معشوقه شعر نومېږي
دمور له مينې آن د خدای ترپولې
ورسره مينه کوم
آسمانه ته ووايه
داسې عاشقه معشوقه به هم وي؟
چې لکه شعر خوږه وي
د مور له مينې
آن د خدای تر پولې
راسره مينه وکړي.

لطيف بهاند

هغه په ځان باور لري،هغه په ډېرې اسانۍ سره ،ډېر کیفیتونه د تورو او کلماتو په زور شاعرانه کوي.

دی په خپله لیکي:

((زموږ د شاتو مچېو به له ټولو نه ښه شات د کوکنارو له گلونو جوړول.شاعر د شاتو د مچېو په شان له یوې لوېې بدرنگۍ نه هم د ښکلا ذرې راټولولی شي.دکوکنارو په همدې یوه بوټي کې شات هم شته،خو چې د شاتو د مچېو په لاس ورشي.دواهم شته چې د یوه لوی طبیب په لاس ورشي.همدا بوټی مرگونې شېبې هم لري چې د پېښور د چمنونو تر ونو لاندې ډېر پودریان ورسره لاس او گریوان دي.))۱-کاوران،پیرمحمد ،چنار خبرې کوي،د سریزې لومړي مخ.

د کلمو شعري کول او یا دا چې ځینې پوهان کلمې شعري او ځینې شعري نه گڼي،زما خپل نظر دادی چې ټولې کلمې شعري توان لري،دا د شاعر واک او تخیل پورې اړه لری،چې هغه څنگه سره امیل کوی او هغو ته څنگه خپلمنځي اړیکي ور ببښي او علت یې هم دادي چې هغه ښکلا سره همژبی دی:

خدای چې راکړه برخه د ښار یاره مه کړه رخه
خوار غریـــب او ښه یم له ښکلا سره غږېږم

## ایراني مشر پوهان ، شیمسا لیکي

په هره ژبه کې شعري کلمې خپل ځانگړې تاریخ او برخلیک لري..د انگلیس د اتلسمې پېړۍ په اویایمو کلونو کې ورځنیوخبرو او شعري کلموتر منځ توپیر خورا زیات و.توماس گري نومی پوهان هم یادونه کړې او لیکلي یې دي:ورځنۍ ژبه هېڅکله د شعر ژبه نه ده.هغه عقیده لرله چې یوازې د ولسي ژبې یو نیم لغات کولای شي،شعري ژبې ته لاره پیدا کړي.پوپ، نومي شعر پېژندونکي چې ددغه اند خورا لوی تند لاری دی ،لیکلي دي:

د یوې قصیدې لغتونه باید د یوه شپانه له سندرې نه ډېر توپیر ولري.))

که څه هم په پښتو ادب کې دغه ستونزه کله لیدل شوې او لیدل شوې نه ده،خو دلته مود هغې یادونه ځکه وکړه چې کاروان ددې ټولو پاسنیو خبرو او دلایلو سره سره په خورا

ښکلي او ښه ډول هره کله او ورځينۍ خبرې شاعرانه کوی او د شعر په ډولۍ کې کله ترې د غزل ناوې، کله د وياړ قصيدې او کله هم هسې د وير ټوټې جوړوي، وبه ګور چې د پاريس او بدخشان توري دلته څنګه کارول شوی دي:

د وطن پېغلې مې په غاړه وړې د اوښکو اميل
د پاريس پېغـــــلو ته غمي له بدخشانه رسي
خوشالخان خو شعر کله حيض الرجال، کله د خدای له خوا دده پر غاړه اېښودل شوي پور او يا

طبيعت مې عطايي نه د تحصيل دی
که خبـــريـــم د امـــلا په استعمال

او يا

د الهام غوندې خبروي چې را درومي
چې زمـــــا پـــه زړه نزول کا لا يزال

حميد بابا بياهغه ديار د شونډو خوند بولي او وايي:

که يې لب د شکرزبېښلي نه دي
د حميد زبان په څه شه شکرريز

او يا خو هغه دفکر توره ګڼي او داسې يې انځوروي:
اوس دفکر توره واچــــوه حمـــيده !
چې دې نه شته په پښتو کې اوس حريف

خو پير محمد لکه د خپل د شعر د ډېرو خيالزه خيالو په شان د شعر د معنی او په ده ددغه نعمت د نزول په اړه خورا زيات خيالونه لري چې يو څو بېلګې به يې را واخلو.

لطيف بهاند

تر هر څه دمخه خوپیرمحمد شعر د خدای پېرزو ګڼي او وايي:

خدای مې ناست په زړه کې دی، باران په ګلو ځي راځي
ټول ټپه ټـــــپه یــــم، یــــکه زار تــــــه مخامخ یمه

روح مې لوی ګړنګ دی، د نغمو له ازانـــــګو نـــه ډک
ښايي کوم غیبي لوی سنــــــــدرمـــار ته مخامخ یمه

د خـــــــداي لـــــــه تــرنم ځنې مو غېږې ډکولې
نغمې مو ښکلولې په غـــــــزل کــــــې سره ناست وو

او یا داچې:

ښکاري په زړه کې مې سندرې کرې
دغـــــــزلـــونـــو له مولا راغلې

کله کله دی شعر د مینې او الهام او هغه د تخیلي زېږنده او کله خو بیا دی هم یا نه پوهېږي او یا تجاهل عارف کوي او لیکي:
ووایه کاروانه موکل د کوم یو راګ یمه؟
خو بل ځاي بیا د الهام د ښاپېرو په پېرزوینه کې خورا پټ رازونه په خورا اسانۍ سره په شعر بدلوي

بس د زړه په مراندو څو ملا ماتي لغات وتړه
ګرانه شاعــری څه ده؟اسان غوندې هنر دی
کله بیا د انساني هستۍ پراخ ډګر ته، دټولو ښکلاوو اصلي ادکې ته ،فطرت ته د درناوي سر ټیټوي او دخپل شعر ادې یې ګڼي او وايي:

چې پټې راته ساتي همیشه د نغمو غوټې
کاروانه مهربانه ده پر مـــا دفطرت مور

هغه په همدې باور کې په شاعرانه اسانۍ د بلبلانو او د ځنګلونو جادوګر سره د زړه تر خوالې وروسته ،هغوی او نور هر څه د عاطفې په نري تار تړي او له هغو نه ګنهګارې نغمې جوړوي:

د کاروان د شعر او الهام یوه بله سرچینه ځنګل دی، ونې دي او نښترونه.شین ځنګل،تور ځنګل،دکلي ځنګل،دغرونو ځنګل،دمینې ځنګل ،ګڼ ځنګل او دده دچاپیریال ځنګل.ان دا چې ځنګل ده ته یو لیک لیکي او لیک ده ته وایي:

درته کـــافرې تـــرانـــې لـــرمه
راشه یو څوېې مسلـــمانې خوکړه
خیر دی یو څو به ملـــکې شی درته
ځینې یې وینځې،غلامانې خو کړه

راشه پخلا شـــــه مـــــروره اشنا
چوپو بلبـــلو تـــه سنـــدرې راوړه
د پـــــرښو پرښو پنجـــرې ماتوه
بندې طوطیانو ته شـــــکرې راوړه

درتـــه بـــــه راولـــم شاعره اروا
د ورک ارم دښاپـــــیرۍ پـــــه بڼه
درته د لمر زرین تارونه اوبـــــــم
بس د سندرو د کیږدۍ په بـــــڼه

د ښکلا داسې جزیـرې در ښـــــیم
چې د شاعر سړي په خیال کې نشته
ستا د یوې ټپي په زړي کـــــې شته

لطیف بهاند

د نورو ژبو په جـــــوال کې نشته

راشه د شپې، راشه شاعر به دې کړم
په شنو اوبو کې رانه ستوري ګرځي
دوی پر زرین مازدیګـــر لوړه کړې
چې ټول به ستا د غزل تـوري ګرځي

کاروان، هم د یو زیات شمېر نورو شاعرانو په څېر له ځمکنیو انساني ښکلا نه ځان ژغورلی نه شي.د ښکلا زور یې دې ته اړ باسي چې په هغې ایمان راوړلو ته ګونډه شی او له خپلو ټولو اسماني الهامو سره سره د نجونو په دعاګانو کې خپل ټول توان وګوري:

چې ترانو راپسې درستو اقتدا کـړې ده
ماته د کلي د ګودر نجونو دعا کـــړې ده
خود به لفظونو ته د سرو زرو اوبه ورکوم
ما پیروي ستا دلاسونو دکیمیا کـړې ده

کاروان خو یو نیم وار د خپل شعر لیکل خورا اسانه ګڼي او دخپل شعر د الهام د سرچینو داسې یادونه کوي:

په وینه وینم، لکه خوب ښـــا پېرۍ
په مایې زېرې د غـــــزل کـړی دی
د چا اواز لکه د شـــاتـــــو خـوږو
خدایږو په ما خو یې څه چل کړی دی
وې:ته خبرې کوه چـــوپ یې ولې ؟
کاروانه !چېرې دې مـــزل کړی دي؟

په ټولي،ډول د شعر لومړۍ ځانګړتیا لمسون دی.زیاتره پوهان دهغه دوهمه ځانګړتیا احساس او دریېمه هغه یې اغیز یادوي.

لطیف بهاند

کاروان د احساس له پلوه داسې پانګمن دی،لکه د خپلې سیمې له ونو نه ډک غرونه،لکه په دې غرونو کې د ناسپړشویو لعلونو زېرمې،دی دشعر لیکلو لپاره څه نه د موضوع لټولو ،نه دقافیې امیل کولو ،نه د ردیف ردیفولو او دتخیل خیال پسې منډو ته اړتیا لري،دا ځکه چې ده سره هر څه په ګوګل کې دي

چې بادشاه به یې دشعر سلام ته راشـــي
دکاروان په زړه کې داسې سندر مار دی

شعر،سندره،ټپه،یکه زار،سرود،سرودونه،نارې ،ترانه، څپه، سندرې ...او نور ډېرې دې ته ورته کلیمې او ترکیبونه چې کاروان یې دشعر دمعنی دشعر په معنی او دشعر لپاره کاروي.

تر کاروانه مخکې او لا تراوسه وروسته په پښتو ادب کې هېڅچا د شعر،غزل،سندرې،ترانې،څپې .یکه زار او ځینې نور ددې معنی د څرګندولو کلمات په داسې رنګینې توګه نه یاد کړي او نه یې انځور کړي دي.

دکاروان د همدې لړۍ په دوام او دغو کلمو ته په پاملرنې سره ده چې هغه د خپلوشعرونو، غزلو ،ترانو او څپو نه هېرېدونکي جونګ ((چنار خبرې کوی))داسې ډالۍ کوی:

((دسپلابونو دڅپو ژبې ته !
د ملالیو د ټـــــپو ژبې ته !

د چنار خبرې کوي،شعري جونګ چې د غزلو،قصیدو،دوایزو او نورو شعري ډولونو نه جوړ شوی دی،د((یکه زار)) په نامه یوه شعر نه پیلېږي.

هغه یوازې په همدې یوه غزل کې دوه ځله د ټپې کلمه،یویو وار دنغمې،سندرمار،تار،ستار او موکل کلمات راوړي دي.ددې ټولو کلمو راوړل د شعر،د غزل او د ترانو بیان کوي.

یا یوازې په یوه غزله کې د سندرې،سندرمار،د سندرو،د سندرو دکاروان،د غزل،د لنډۍ، د زار زار،شاعر،شاعرۍ،خبرې او قصیدې د کلماتو کارونه ددې معنی لری چې زموږ شاعر څومره د دې تورو لېوال او څومره د زړه له کومې په دې خبرو ،په دې لاره،په دې فن او په دې مینې.مین دی، دی پخپله وایي:

کړه ولجه يې قصيدې به درته وايي
لـــــه باګرامه د سندرو ځی کاروان

که کتاب ،دسېلابونو دڅپو ژبې ته !د ملاليو د ټپو ژبې ته !ډالۍ کېږي،خو شاعر،شاعرۍ،سندرو او ترانو سره مينې دې ته اړ کړي دی چې ددې او نور شعري جونګونو ځينې شعرونو ته داسې نومونه خوښ کړي:

يکه زار،شاعرې اروا ته،سروش ته،د غزل د بېړۍ نوح ته،د شعر د اسمان يوې پروين ته،توري او لفظونه،د کابل زخمي سندره،شينکی طوطي،د شاعر د خوب مړی،زما مين تخيل،شاعرانه ارواوې،د خدای د غزل اورېدونکی،خدای ښامار بېرته شاعر کړ، د درد غزل،په هنداره کې تصوير،د شعرونو سيمرغ،شاعر ته ليک دځنګل،يو شاعر وژنمه يوقتل کوم،په ټپو يې ژبې واکړئ،د ځنګل د ليک ځواب،لېونيه سندرماره،اروا ښاد اسحق ننګيال ته !.

په دې شعرونو کې،په دې ترانو کې اوپه دې ټپو کې کاروان په لسګونې وارې،دشعر،داحساس،دعاطفې،دبيت،دالهام،دټپې،دترانې او قافيې ...خبرې،سپړنې او انځورنې کوي.

هغه په دې شعرونو کې د غزلونه،قصيدو نه او سندرونه،د خيال او رښتينو رنګينو سمندرونونه،د تخيل مرغلرې راباسي.

هغه په دې شعرونو کې د غزلونه،قصيدونه او سندرونه وېرنې او ستاينې راباسي.

هغه په دې شعرونو کې د غزلونه،قصيدونه او سندرونه،د الهام او ژور خيال په مرسته،دښکلا دغرو په سر دشاعرانه ارواح او نامرادو مرغانو د ورانو ځالو تصويرونه راباسي او وايي:

ته دښکلا دغرپه سـرولاړه،
لکه مغروره اوسرکشه ونه،
په څانګو ،څانګو کې دې ناست دي دسندرومرغان.
ستادسندرومرغان،
که زموږکلی ته په سيل راشي،
زموږ دغرونودځنګلنوڅېړۍ غوڅې اوننبسترشهيدان،
زموږدکلی له چنارچناره،

د شهيدانو تابوتونه جوړدي،
زما په لپه کې دې ځاله وکړي،
ستاد سندرو مرغان.
...خو که د ونې د دوو څانگو په څېر
زمالاسونه په تبرونو چاغوڅ کړي نه وو !

د پښتو ژبې په يوزرو دوسوه پنځوس کلنه شاعرۍ کې له امير کروړ رانيولي بيا تر افضل ټکوره پورې،زموږ گرده شاعرانو د شعر پېژندنې په هکله يو څه ويلي دي.البته کاظم خان شيدا خپل ځای لري.

د څو تنو نه پرته د نورو ټولو ويناوې خورا عاطفي،خيالي او د احساساتو له مخې د شعر په اړه ويناوي دي.

که څه هم دغه لړ ی په شلمه پېړ ی، په تېره بيا د هغې په دوهمه نيمايي کې بله بڼه پيدا کوي،خو ترسليمان لايق نه وروسته کاروان کېدای شی لومړي پښتون شاعر واوسی چې په شعري ژبه،داسې په ژوره،هر اړخيز او نزاکت سره د شعر،شعر پېژندنې او شعري روح خبرې ،سپړنې او شننې کوي.

د کاروان په شاعرۍ کې شعر نه يوازې دعاطفې او احساساتو له پلوه بلکې له ټولنيزه پلوه هم څېړل شوی دی.په شعر پېژندنه کې خو تر ډېرې مودې پورې دا خبره چې شعر د درد زېږنده ده،د يوه اصل په توگه منل کېده او لا تراوسه هم خپل پلويان لري،کاروان هم په خپلو شعرونو کې د دې خبرې يادونه په هنري بڼه په وار وار سره کړې ده،دی وايي:

راغي د دردونو د کاروان سره د بـــــره نــــــه
خدای ته مې اميد دی،د سندرو ښار به ونيسي

او يا دا ښکلې شاعرانه ادا:

درد يم په لفظونو کې مې ونغاړه
لږ خو مې بيان کړه بې تفسيره يم

زه د دردونو د کــــاروان لاروی
په یوه ښکلی سندرمار پسې ځم
کېدای شي کاروان په پښتو شاعرۍ کې هغه شاعر وګڼو چې په خپل شعر کې یې تر بل هر چا نه زیات د غزل کلمه په غزلیزه بڼه تکرار کړې وي،ده څو ځایه خپل ځان غزل ګڼلی او ددې غزل لوستل یې نورو ته ورښودلي دي:
لوله مې تــــل پـــــه ترنم،ترنم
غزل،غزل یمه دیوان به دې شم
یا داچې
ته پوه شوې چې دا څنګه شو کاروان غزل غزل؟
دا نن یې ایـــــله یـــــو نظر خیــــبر لیدلی دی

حسنه که میزبان مــــــې شــــوې میلمه یمه
عشـــــق یـــــمه،غـزل یـــــمه،نغــــــمه یمه

هغه عبادت هم په نغمو کوي،خو دی ددې ټولو ځواب ډېر آسانه کوي او وايي:

چا ویل راته چې ته څنګه شاعر شوې؟
ما وې ماته،شاعري راکړه جـــانــــان.

خو دغه جانان بیا دی خپله هم نه پېژني او پو ښتنه کوي:

دا ته څوک یې چې دې وینځې دي سندرې؟
دا تـــــه څــــوک یې چې غزل دې غلامان؟

د روسیې ستر شاعر باریس پاسترناک د شعر په اړه ویلی شوي دي:
د پاسترناک د شعر لوستل روح آرامه، نفس پیاوړی او هوا سپېڅلې کوي.دغه شان اشعار باید دنړی رنځ دارو وی.
زه چې د کاروان شعر لولم په ما همدا کوډ ې کوي.

لطیف بهاند

# کاروان او نوی شعر

د شعر تعریف او پېژند نه هېڅ ډول برید او پای نه لري.

که دا ومنو چې شاعر، د هغه ژبني توان یا ژبنۍ پانګه او د هغه تخیل او پرپوهې د هغه لاس بری، د شعر، د نوښتګر شعر، لومړني تومنې دي.

د شاعر کشش، د تخیل لوړوالی یا ژوروالی او پوهنیزه پانګه هغه څه چې کاروان د خپل ژوند د کاروان کاروان پرې پانګمن کړی دی.

کاروان نه د کوم دود د ماتولو تکل لري او نه د کوم دود د دودولو، هغه غواړی د خپل روح تنده ماته کړي. هغه خپله هم حیرانېږی او نه یې منی:

دا غریب سړی ګوره له غرونو راغـــی، نن
دومره جګ برجونه د سندرو د ښار څه معنی

د نغمو خدای ته به ډېر ډېر شرمـــــنده شو
د بلبل ځالې که زاغ و زغـــــن یـــوسي

کاروان څله دومره سوی غـــــــزل وایي؟
چې یې روغ واوري زړګی یې لوغړن یوسي

چېرته ما د چا په نوم دعا کړې ده

لطیف بهاند

# رند کاروان

د جرس حاجت کاروان ته پاتې نــــه شــو
شنو بنګړیو دې وه مسته شرنــــګا کړې

د سپین واعظ، تورې خبرې مې خـــورې
د شنو بنګړو په شرنګهار پـــسې ځـــم

څله بنکلوې راباندې پښې د زیـــارتونو
خدای خو دې په خامه بهانه راسره یار کا

کاروان چې کله د زړه په للمو دبنګو باران ووروي،کاروان چې کله دشعر ګونګرو ته مستانه شرنګ ورکړي،کاروان چې کله د زړه په پاچاهۍ د شعر کوډګره شهزادګۍ کېنوي،

دود د فرهنګ پانګه او دهغه ساتنه ده او نوښت د فرهنګي بهیر د ودې خوځون او لمسون.

له دود او له خپلې ختې او جرړو بې خبرتیا شاعر له هېڅ سره برابروي.نوښت په تش ډاګ نه کېږي.

کاروان چې دخپلې ژبې ټول دودیزشعر ته درناوی لري،خو نوښتګر هم دی،داسې نوښت چې په یوه نوی دود بدلېږی.

د ښکلایز شعر دود

له شعاره پرته دسیاسي شعر د لیکلو دود:دا یو رومنتیک سیاسي شعرونه دي،بل هغه تراژیدي سیاسي شعرونه.

دا ډول شعر لرغونۍ تاریخ لری:

لطیف بهاند

خوشال بابا وایي:

نه غواړم د کاروان د شعر له کاروانه جلا او د دې ژانر په تاريخ زيات بوخت شم.

په پښتو ژبه کې نوی شعر د شلمو کلونو په اوږدو کې د بهرنيو شعرونو د آزادې ژباړې نه راپيل شوی دی. دغه شعرونه «دآزاد شعر »«منثورشعر» او يا هم «دسپين شعر»په نامه ياد شوي دي.سره له هغه چې نه شم کولاي دا په زغرده ووايم چې چا به زموږ په هېواد کې تر ټولو زيات او په ځانګړي توګه په دې ژانر کې طبعه ازمايلي وي خو بيا هم محمد موسی شفيق،عبدالرحمن پژواک(کلمه داره روپی)استاد پوهاند بهاوالدين مجروح،(ځانځاني ښامار)پوهاند دوکتور زيار،سليمان لايق،سعدالدين شپون او تر هغه وروسته باری جهانی،محمد اسحق ننګيال او نورو ډېرو شاعرانو په رښتيا ښې ښې انځورنې کړي دی.

دا شعر په پښتو ادب کې آزاد شعر دومره لارې او ځانګړي سبکونه نه لري چې د هغو له مخې موږ وټاکلی شو او ووايو چې د کاروان شعر په نوي شعر کې چا پسې تللی دی.

پيرمحمد کاروان نه ديوې ځانګړې لارې بلکې د خپل خاطر،خپلې طبعې او دخپلو خوږو خيالونو په خوښه خورا ښکلې ټوټې ليکلي دي.

دهغه د چنار خبرې کوي ،په جونګ کې چې ټول ۱۹۷ټوټې شعرونه خپاره شوي دي،دالاندې **۳۵** ټوټې آزاد شعرونه دي:

شاعرې ارواح ته !توري او لفظونه، دآسمان ناوې !شينکی طوطي،معشوقه،د درد سکې،ملنګ،امتي،شينکی باغ،د شاعر دخوب مړی،يادونه،زما مين تخيل،زموږ وطن،وريښمين لاسونه،خوب،شاعرانه ارواوې،درې سواليې؟؟؟چنار خبرې کوي، ليلا ، د شپې ماشوم شمه زه،دبورې هوسۍ اوښکې،دخدای دغزل اوريدونکی،پيغمبرې اوښکې،زکات،ست،لوی خدای ته فرياد ،دسپين جانان شين ليک،راوي،يو ګرځنده ګل ته !په هنداره کې تصوير،د عزراييل کچکول،يوپاکيزه خوب،اخبارلوستونکې ته !نرخ،

دغه راز دښاپيرۍ ورغوی،په شعري ټولګه کې د **۷۲**راغلو شعري ټوټو نه **۱۲** هغه آزاد شعرونه دي:

او په دښاپيرۍ ورغوي کې،لکه زيړه زرغونه،لړراتم شه لارويه !يو شاعر وژنمه يو قتل کوم،د هوسۍ دشيدو بوی،په ټپو يې ژبې واکړئ،ته به راځې،ته مې په خوب

ليدلې،ليونيه سندرماره،ما بيګا خوب ليدلی ،غم،خوب،دعا،امتزاج،ګل او بنيادم،سوال،

## د کاروان هر شعر دهغه د ژوند اړخ يوه برخه ده.

د پښتو ژبې ددې پيل او يا ستر بدلون په باب پوهاند عبدالحي حبيبي څه کم پنځوس کاله پخوا وليکل :

»د ادبي نويوالي دوره له هغه وخت څخه را پيل کېږي چې له اروپا څخه د مدنيت نښې نښانې دې خاورې ته راورسيدلې چې د ختيزو اولسونو په ژوند، انديښنو او تفکر په ډول کې يې بې ساری او ښتون راوست ،دغه تدريجي اوښتون زموږ پښتو ژبه له دوو خواو تر اغېزې لاندې راوستې ده او هغه ته يې نوی رنګ ورکړ.

الف: د وزن عروضو او قافيې يعنې د جوليز ليکلو ډول او مادي اسلوب.

ب: د مضمون محتوا او هغو احساساتو او عواطفو او افکارو له پلوه چې په شعر کې نغښتل شوي دي... چې موږ د نوي والي په دوره کې دوه ډوله ويونکي لرو.

لرغوني: کلاسيک قالب کې.

نوي: په نوي قالب کې«

په دې توګه په برالاتوګه په پښتو ژبه کې د همدې شببو څخه د نوي جولې ( شکل ) خبرې پيل کېږي. که دا ووايو چې د نورو ډيرو ژباړو ترڅنګ چې بېلګې يې په طلوع افغان کې خورا ډېرې دي ،د نوي شعر له پاره يو تکل پيل کېږي ، بې ځايه خبره به مو نه وي کړې. ځکه که زموږ شاعر ته هغه وخت د نوي يا بې قافيې شعر پوښتنې په مخه ورغلي واي،نو هرومرو يې خپلو هغو آثارو ته چې د ((منصور شعر)) تر کليشې لاندې خپريدل پام کولو، خو بيا هم د ډيرو نورو تر څنګ داسې بېلګې هغه وخت کې هم موندلای شو:

د ما اوستا پښتو به څنګه شي.
خوزه مینه.
لږ وماته وګوره..
د زړه سره
دسترګو توره
د ټپي ځګر ټکوره - اې چې ځما دزړه طوطي
لږوماته وګوره - ستا د مینې په دام ګیر
او ستا دعشق په لمبو ویلي
تر تا جار شم
لو خو ماته وګوره.

۱-دافغان یاد ،۱۳۶۰کال .

دغه شعرونه داسې خواره واره وو اوهېڅ چا په کې داسې کړم ستر او دپام وړ نوښت ونه کړ چې دیوه بشپړ بهیر بڼه پیدا کړي.

په دې اړه د زیاتو معلوماتو لپاره دې زما هماغه مقاله وکتل شي چې د افغان یاد په کتا ب کې خپره شوې ده.

د کاروان نوښت په دې کې دی چې دهغه نوي یا آزاد شعرونه نه د بڼې او نه دمضمون له پلوه هېڅچاته ورته نه دي.

هغه په دې شعرونو کې هر ډول خیالونه،مینه،کلیوال ژوند ،ایمان ، طبیعت ، ښځه،فلسفه او هرڅه نور راغاړي خو دشعر،سندرې او ترنم موضوعات هغه څه دي چې دده په آزاد شعر کې تر بلې هرې بلې موضوع زیات انځور شوي دي،خو دا موضوعات ګورئ څنګه شاعرانه انداز پیدا کوي:

زموږ ژوند لکه نجلۍ زموږ د کلي
چې دجنګ په ورځ پیدا شي
او دجنګ په ورځ شي پېغله
دښایست په ایینه کې
اول موسکه شي،بیا کټ کټ په خندا شي،

چې نلۍ یې شي رجړومه
د سل ډزې ماشینګنې
سلایي یې ماته ستن د کلاکوف شي
د خنجر په څوکه خال پر زنه کېږدي
له ناچاودي بم نه وباسي
نري نري تارونه
په کې وپېیي مرۍ او مرغلرې
په ځونډیو کې یې پټې کړي هنداري
تر ینه جوړ کا امیلونه او هارونه

دلته پرته له هغه چې موږ د کوم علت لټونه وکړو کاروان له شعر نه دخپل ملت دتاریخ داسې رنګین تفسیر جوړ کړی چې نه یوازې دهغه د اوږدوالي بلکې له هغه سره د ولس د عادت کېدو ښکلی انځور دی.

د کلماتو هغه هم د سوچه کلمو کارونه،دهغه دشعر قوت لا پسې قوی کوي.

که څه هم زه تصور کوم چې کاروان د شعر د تخلیق په وخت کې په دې اړه زیات فکر نه کوي چې دلته یا هلته کوم لغت،خبره یا ترکیب وکاروي،خو بیاهم داسې برېښي چې هغه هره کلمه په خورا ځیر سره ټاکي.

کله چې د کاروان شعر لولم داسې تصور کوم چې هغه شعر نه لیکي،په هغه کې شعر را ایشي.په هغه کې شعر راخوټېږي.دهغه دخیال مرغه داسې لوړ او لر وبر الوزي چې دی خپله هم پسې رسېدای نه شی.دهغه دالهام سرچینې ده ته دا توان ورکوي چې دی نه یوازې دشعر بڼه بلکې دهغه تومنه او متن داسې بدلوي چې په یوه نوښت بدلېږی:

زه د ګودر په غاړه نه یم ولاړ
ما سل زلمي،سل جنیکۍ په غېږ کې ټینګ نیولي
زه د کنډو پر سر په لویه هدیره کې ښخ یم
زما په هر تابوت کې
یو ګودر وینې خنبې
یو ګودر اوښکې ښخې

لطیف بهاند

زما د هر تابوت پر هره تخته
دعاشقانو معشوقو نومونه
د گور چنجو خوړلي
زما له ځانگې جوړه شوې، سرینده ده ماته
په تش گوگل کې یې د غم توره پیشو ده ناسته
خوله یې په وینو سره ده
د ژوند له ښکلیو ماشومانو یې خوبونه وړي
د کښت د پېغلو پر سینو نه شته د ږدونو ځونډي
زموږ د کلي د بامونو د سر
روږدې کوترې ورېږ
زما د ځانگې له رباب نه د شکید لي ځونډي
وچې مرۍ تیروي

## ښځه او د کاروان په شعر کې دهغې یادونه.

مور، ښځه، پېغله معشوقه، بوره مور، بوره خور، کونډه، نجلۍ،
که شعر ژبه لرلای، چې لري یې. د کاروان په شعر کې به د ښځو دغم او ویر نارې
تر هسکه پورې رسېدلې وې. داسې تصور کېږي چې کاروان دا شعرونه په یو ډول نه یو
ډول هغو ته لیکي.

لطیف بهاند

# کاروان او چنار

چوپ شمه، که ووایم چې دنګه یاره تا ښیم
خلک راته وایي چې کاروانه چنار څه معنی؟

کاروان د تصویرونو له لارې،کاروان د خیال په مرسته،کاروان دتخیل او یا د کلموپه هنري کولوسره له ساده ژبې ښکلي افساني او یا کولی شو ووایو ان اسطورې جوړوي.داسې افسانې چې هغه د لوستونکو لپاره،په یوې ښکلې او مینه ناک زیري راوړونکې تصویر بدلېږي.لوستونکي او اورېدونکي له دغه تصویر سره مینه پیدا کوی،په هغه میینېږي او کله کله خو له ډېرې مینې نه د هغه لمانځنې ته اړوزي، دا دوه لاندنې بېلګې خو زموږ ددې خبرو ښه تائید دي:

بلبلان مې اوس په سر کې ځالې نه کړي
اور مې واخیـــستو د بـــر کلي چناریم
چې دیوان د بد رنګۍ راتـــه ګوابښږي
زه دښکلیو ښاپېریو هـــــغـــه ښاریم
ما چې سوځي خپل هډو کې یې ایره شي
خبردار زه د کـــــابــــل د زړه ازاریم
۱-۲۶۷

کاروان په خپلو شعرونو کې،د کاروان،سندره،باګرام، ځنګل،ښاپیرۍ او چنار کلمې داسې نازولي،چې هر یوه یې دده په جوړو شویو تصویرونو کې په ابدي معبدونو او ځانګړو ښو په شعر او نوښت بدلې شوي دي.

د لیکنې په دې برخه کې به دده په شعر کې،نه نه ،ښه به دا وي چې ووایو دده په ژوند کې د چنار دکلمې او له دې کلمې نه د جوړو شویو تصویرونو ننداري ته کینوو ،ورته ځیر شو ،ورسره وغږېږو ،خوند ترې واخلو او پر ې وغږېږو.

لطیف بهاند

زه داسې تصور کوم چې د کاروان لپاره چنار هم تر هرڅه نه دمخه مينه ده،هغه هم انسانی مينه،دي وايي:

د کاروان دچنار د مينې دا لړۍ کولای شو همداسې اوږده کړو،خو دا خبره چې کاروان د خپلو خورا ښو ښو شعرونو يو نه هېرېدونکې ټولګۍ د چنار خبرې کوی،په نامه نومولي،دا معنی لري چې چنار به کاروان ته څومره ګران او تر کومې اندازې به هغه ده ته ارزښتمند وي.

درې واړه پر ما ګران دي،اول يار زما دکلي
چـــنار زمــــا دکلي او کوکنار زما دکلي

هو څوک چې دا نوم اوري د کاروان خبره پوښتي چنار څه معنی؟ يوه معنی خو يې کاروان مخکې وويله.بله پوښتنه دا چې چنار څنګه خبرې کوي؟ولي چنار؟ولي نه ګلاب؟ ولي نه ټول ځنګل او يوازې چنار؟ د چنار خبرې کوي،تر خپرېدو نه وروسته خلکو له کاروانه، دا پوښتنه دومره کړې چې پير دې ته اړ شوی هماغه مصرعه ووايو چې مخکې مو ياده کړه،هغه دومره خوږه ده چې تکرار ته يې حسن تکرار وايو او ليکو:

چوپ شمه،که ووايـــم چې دنګه ياره تاښيم
خلک راته وايي چې کاروانه چنار څه معنی؟

کاروان له چنار سره داسې د زړه خواله کوي لکه له ښتني دنګه ياره سره.هغه هغه سره خاندي،هغه هغه سره موسېږي،هغه هغه ژاړي،چغې وهي،ناري وهي،هغه سره غاړه په غاړه ټپې وايي،هغه ته غزلې ليکي او کله لکه د بت په شان خاموش ورته ناست او د زړه راز ورسره کوي.په دې ټولو حالاتونو کې د کاروان په زړه او ژبه،د هغه په روح کې او د هغه په خيال کې يو پټ روح او روان په خوځون دی، داسې روحي ارمان چې غواړي يو څه ووايي او يوه لوی ارمان ته نه يوازې ځان بلکې ټول ورسوي. دی دا ټولې خبرې د چنار له ژبې کوي او وايي:

چنار خبرې کوي
زه د بر کلی د ګودر دغاړې
يو شين چنار وم،چنار
هر مازديګر به راته سلو نجونو

لطيف بهاند

په سرو منګولو سلامونه کول
سحر وختي به مستانه پېغلوټو
زما پر ټيټو او خورو څانګو اوبه شيندلې
زه به په ناز لکه خوب وړی زلمی
څه غلی، غلی وبوږنيدم
له شينکي خوب نه به د پېغلو په خندا ويښيدم
له ساړه باد سره به اخوا دې خوا
لکه د ټال زنګېدم
او د ګودر اوبو به
راته چمبه وهله
لکه ملاله پښتنه پېغله د ورونو په ورا
په شنه ګېډۍ ګېډۍ کميس کې ګډېدم ګډېدم
کله ناکله مې په غلي ماښام
له سپينو خولو نه د تودو مچکو خرپ اورېده
لکه غوږونه به مې
د څانګو، څانګو په لاسونو کې نيولې پاڼې
ما به د دوو مينو
د ښو ګانو هر يو رپ اوريده
بيا به مې باد ته ښورول لاسونه:
غلی شه خدای ته ګوره شور مه کوه !
خدای زده چې ولې به د باد غماز ګر
راسره رخه کېده
د دوو مينو ننداره يې په ما نه لورېده
لکه چې مست ښامار زنګېږي د چنډ پر څانګو
داسې په خرپ به يې کړې ماتې رانه غبرګې څانګې
پاس به له ځالې نه جوړې بلبلې والوتلې
لاندې به هم غلې شوه
د تودو شونډو د مچکو خرپا

لطيف بهاند

زما په زړه کې به وې څړیکې تر سهاره خورې
سهار به لمر راوخوت
نجونو به بیا په سلامونو باندې ونمانځلم
لمر به چې څو نیزې له غره راجګ شو
د ګودر غاړې نه به وکوچېده
د مستو نجونو د منګیو کاروان
مهار د وړانګو یې په لاس کې و د لمر د ځاروان
لمر به د وړانګو په تودولاسونو غوټه کړلې
زما د غبرګو ماتو ځانګو له رګونو سره
خرپ د مچکو او سندرې د جوړې بلبلو
لکه ماشوم به له خندا نه شین شوم وبه مې وې:
-اخ خدایه !بیا دچا ښکالو راغله؟
بیا مې په رګ،رګ کې خورې شوې څېړیکې
هغه دی بیا مین زلمی راغی
چې دا زما د ماتو ځانګو خواکې څه لټوي؟
هغه دي ټولې یې کړې
ټوټې د ماتو بنګړو
او مرغلرې د شکیدلي امیل
هغه دي غوټه یې کړې
د سره دسمال په پېڅکه
ښایي چې دا دسمال هم
چا ورته جوړوي په وریښمینو ګوتو
ما به له زړه سره پټ پټ وخندل:
خدای ماته هم مین زړګی راکړی
چې د مینو په راز ښه پوهېږم
زلمی به غلی،غلی
لکه ښکاري نه ترهیدلې غرڅه ماته راغی
اخ څه ښایسته و زلمی

لطیف بهاند

اخ څه ظالم و زلمی
چې په تېره چاکو يې
زما په تاند او په غوښن ټټر کې
د خپل معشوق د نامه
شپږ نه اووه توري ژور وليکل
زما ټټر کې يې چاکو وښوييد
ښايي زما د ناز ښېرې وو اهه
گوته يې هم شوه برسيرنه ژوبله
چې په تودو وينو يې
د خپل معشوق د نامه توري سره شول
په وينو سره توري يې
په مينه، مينه ښکل کړل
زما په رگ، رگ کې
د خواږه درد څرېکې خورې ورې شوې
خورې ورې څانگې مې
لکه د اور لمبې شوې
سيل د مارغانو رانه والوتو
ښايي په دې پټو لمبو باندې يې پښې وريتې شوې
هغه مين زلمي زما د وجود
دوې ماتې غبرگې څانگې کورته يوورې
بيا به مې ان له شفقي ماښامه
تر سپيده داغ پورې نغمې اوريدې
د سريندې له نري تاره، تاره
د مست رباب له مستانه شاتاره
څه په خندا به مې په غبږ ورېده
د شنه آسمان د سپينو ستورو له رڼو سترگو نه
د پلوشو د اوښکو داره، داره
زما تر زړه به يې کړه نېغه تېره

لطيف بهاند

د وړانګو سپینه لاره
پاس د ښایست پرښتو
راته نیولې وه رڼه هنداره
شینکی اسمان به مې د ځان سکه تصویر ګڼلو
او راڼه ستوري مې د خپلو څانګو
سپینې مرغۍ بللې
داسې زما د ژوندون
پېغلې شپې تېریدې
لکه د پېغلو تکې سپینې لیچې
د شنو بخملو له لستوڼو راوتې تیریدې
داسې یو څو شپې وې د قدر شپې وې
چې ویښ به ناست وم، تر سهاره پورې
چې ټوله شپه به مې څارلې د مینو لارې
زما به پانه، پانه غوږ غوږ وه
د هغې مستې سریندې نغمو ته
چې په لیندۍ کې یې یو څو تاره د څڼو هم وو
له کاره ویستی ومه شرنګ د رباب
چې په سینه یې د درخو د لاس څونډې زنګیدل
پرون چې بیا لکه د ناوې زلمی
دنجونو منځ کې ناست وم
ناڅاپه کړیکې شوې، د وای مورې نارې خورې شوې
په ځان خبر هم نه وم، څانګې مې ارې، ارې شوې
بنګړي ذرې، ذرې شول
منګي کودي، کودي شول
څڼې لمبه، لمبه شوې
شالونه باد یووړل
پاس مې آسمان ته کتل
زما پر خوا و په غړمبا را روان

لطیف بهاند

لکه یو ستوری له مداره وتی
لکه یو غشی له پرهاره وتی
د اور ابلیس د ملایکو له کتاره وتی
پر جوماتونو پر حجرو پر گودرونو پریوت
پر سر د مستو چنارونوپریوت
***
زه د گودر په غاړه نه یم ولاړ
ما سل زلمي، سل جنیکۍ په غیږ کې ټینګ نیولي
زه د کنډو پر سر په لویه هدیره کې ښخ یم
زما په هر تابوت کې
یو گودر وینې ښخې
یو گودر اوښکې ښخې
زما د هر تابوت پر هره تخته
دعاشقانو معشوقو نومونه
د گور چنجو خوړلي
زما له څانګې جوړه شوې، سرینده ده ماته
په تش گوگل کې یې د غم توره پیشو ده ناسته
خوله یې په وینو سره ده
د ژوند له ښکلیو ماشومانو یې خوبونه وړي
د کښت د پېغلو پر سینو نه شته د ږدونو څونډې
زموږ د کلي د بامونو د سر
روږدې کوترې وږې
زما د څانګې له رباب نه دشکیدلي ځونډې
وچې مرۍ تیروي
***
زه د بر کلي د گودر د غاړې
یو شین چنار وم، چنار
زه د گودر په طبع ښه پوهېږم
لطیف بهاند

گودر شاعر غواړي چنار غواړي
گودر د سلو منګو
رنګين کتار غواړي
ګودر د غرونو ،د ځنګلونو د پېغلوټو چېنو
کاروان مهار غواړي
چنار، د کاروان د ژوند ، دکاروان د ټولنې د بدمرغه ژوند او دده دلا نه ملت شويو خلکو د اورنې ژوند خبرې دي.په دغه شعر کې دغه لاندې خبرې:
له شينکي خوب نه د پېغلو په خندا ويښيدم
له ساړه باد سره به اخوا دې خوا
لکه د ټال زنګېدم
او د ګودر اوبو به
راته چمبه وهله
لکه ملاله پښتنه پېغله د ورونو په ورا
په شنه ګېډۍ ګېډۍ کميس کې ګډېدم ګډېدم
او يا:
کله ناکله مې په غلي ماښام
له سپينو خولو نه د تودو مچکو خرپ اورېده
لکه غوږونه به مې
دڅانګو ،څانګو په لاسونو کې نيولې پاڼې
ما به د دوو مينو
د ښو ګانو هر يو رپ اوريده
بيا به مې باد ته ښورول لاسونه:
غلی شه خدای ته ګوره شور مه کوه !
خدای زده چې ولې به دباد غمازګر
راسره رخه کېده
د دوو مينو ننداره يې په ما نه لورېده
لکه چې مست ښامار زنګېږي د چندڼ پر څانګو
او ياخو:

سهار به لمو راوخوت
نجونو به بیا په سلامونو باندې ونمانځلم
لمر به چې ځو نیزې له غره راجګ شو
د ګودر غاړې نه به وکوچېده
د مستو نجونو د منګیو کاروان
مهار د وړانګو یې په لاس کې و د لمر د ځاروان
لمر به د وړانګو په تودولاسونو غوټه کړلې
زما د غېرګو ماتو ځانګو له رګونو سره
خرپ د مچکو او سندرې د جوړې بلبلو
لکه ماشوم به له خندا نه شین شوم وبه مې وې.

هغه څه دي چې نه یوازې شاعر په هغه تاریخ هنري کوي بلکې هغه په هغو کې خپل شعري قوت هم ازمايي او هم یې نورو ته ښيي.

که دا ومنو چې شعر د تفکر، هغه تخیلي بڼه ده چې دعاطفي تورو په جامه کې د خپل اغیز هڅه کوي.

که دا منو چې شعر د ژبې تر ټولو نه،غوره شوې،امیل شوې،عاطفي شوې، او په وزن ګاڼل شوې بڼه ده.

که دا ومنو چې شعرد یوې پېښې د تصور او وروسته د تصویر انځوریزه،انځور دی،نو ددغو خبرو له مخې کولی شو د کاروان دا خبره تکرار کړو چې ویلي دي:

تور دیوان مې سلامي کړل،دښکلاوو ښاپیروته
غزلتوري د کاروان دي،که غمي د سلیمـــان دي؟

ددې خبرو نه زموږ موخه دا وه چې کاروان نه یوازې دچنار له خولې نه د خپلې خدای ورکړې شعري ژبې اسماني نښې ځرګندې کړي بلکې له دې لارې یې،خپله ژبنۍ پانګه،هغې سره مینه،ددې ژبې د سوچه کارونې، پردو خیالاتو، افکاروا و کلماتوته نه اړتیا ،د ژبې د سندریزوالي توان او خپل فطري ښکلاییز قدرت هم پر نورو پېرزو کړی دی.

لطیف بهاند

که شاعر خپله ښکلاییز ذوق ونه لري، که شاعر د خپل ملت د ښکلاییز ذوق نه بې خبره وي، که شاعر د ښکلاییز ذوق ښاپېرۍ ځان پسې خپه نه شي کړای، هغه به هېڅکله د کاروان په شان چنار په خبرو راوستلي نه شي، هغه د چنار مینه په ځان کې راززغونوي:

د اوبو په څېر یو څوک به ورته ګورم
راشین شوی مې په شعر کې چنار دی

که دې برخه کې خبره لږه اوږده کړو، کولای شو ووایو:

د کاروان د شعر یو برې دادی چې د هغه ژبه لا لړل شوې نه ده.هغه لا د خپلې مور، خپل پلار او خپلې کورنۍ په ژبه خبرې کوي او شعر لیکي او ددې زیاترو چارو ویاند چنار دی.کاروان دی.اوس خو پوه شوې چې یارانو چنار څه معنی؟

بلبلان مې اوس په سر کې ځالې نه کړي
اور مـــــې واخیستو د بر کلي چنار یم

خو د تعجب وړ خبره خو داده چې کاروان دغه چنار په ټوله شاعرۍ او ژوند که په یو چا بدلولی شي، پوهېږي، هغه څوک ده، نه تصور یې هم نه شي کولای، اوس به خپله درته ووایي:

پردنګو دنګو نجونو دی کاروانه پام په کار
بس بس مړه له لمنځې له چناره واخله لاس

د تورو تکرار

دریاب کې د سندرو به څپې څپې شي
ټـــــپې ټپـــــې ټـــــپې په یکه زار زما د کلي

کاروان په خپل شعر کې د تورو، کلمو او ترکیبونو له نځا او تکرار نه، د خپلو زیاترو غزلو، قصیدو او ان د ازادو شعرونو، موسیقي او له هغه لارې وزن جوړوي

لطیف بهاند

تاته بـــــه دعا دعا دعا ښکاري
پټې په دعا کې ستغې سپورې دي

دغه تکرار او له تکرار سره سره په ماهرت د تورو رنګينول،هغه ښکلاوې دي چې د کاروان د شعر سندريزې ځانګړتياوې پرې ولاړې دي.دغه سندريزه ځانګړتيا دده او دځينو نورو شاعرانو ترمنځ د جلاوالي خو ښکلاييزه کرښه راباسي.دلته د ش د توري او وروسته بيا د چ تکرار ولولئ:

شپه شوه ،شنو لمبو اغوستی،د شيشو نازک لباس دی
شيخه پـــام کــــوه رانــــه وړې،بيا ډبرې ميکدې ته

د شيخانو پاچاهی ده چــې چــــــوپ چـــوپ يم
ګنـــــــي زه هــــــم د ادم د ربــــــاب تـــار يم

غچ غچ په کې،چوپ چوپ دی،د کوچنيو چـوڼ چوڼکو
را ځي چې غچ يې واخـــــلو چـــــا وژلـــي چنارونه

همداسې تر پايه

غـــم دې غــــل دی،پـــــسې غـــلی غلی راغی
پروت په زړه کې مې،غمی ستــــــا د پيــزوان دی

چــــې شو مه دم شي، شپه پخه شي او ويده شي خلک
کـــــــاروان دې اوري،کنه دا يې د سندرو وخت دی

هــــــغـــــــه لشــــې لشې بانه د اشنا نه شته نه شته
د مرګې ژرندې ومـــــرې،ډېــر دې غنمرنګ خوړلي

لطيف بهاند

نــــا ست يــــم په خلوت کې يو ملنګ د زمانې يم
غـــــلی غـــلی غـلی لـــــه غـــو غـــا سره غږېږم

نه پوهېږم چې کاروان په خپله وينا کې د تورو تکرار لاسي کوي او که د الهام په بڼه په ده کې راخوټېږي، خو هر څنګه چې ده ،هغه دا څو چارې تر سره کوي:
-د ده شعر لا پسې سندريز کوي.
-د ده شعر لا پسې ښکلی کوي.
-د ده موخې ته د ټينګار بڼه ورکوي او لا پسې پخه بريښي

غچ، غچ په کې چوپ، چوپ دی د کوچنيو چــــوڼ چوڼکو
راځی، چې غچ يې واخلو. چـــــا وژلـــــــــي چنارونه

# رنګ او د کاروان شعر

رود ،دې د رنګونو کړم، رنګينه يې
رود نـــــه يم د زړه د وينو داره يم

رنګ ،د طبيعت د نورو اغيزمنو هستيو تر څنګ ،د تل لپاره يوه د پام وړ او اغيزمنه پديده پاتې شوې ده.
دغه پديده د طبيعت له زړه نه راپيدا شوې ده، په هغه کې يې وده کړې ده، په هرچا او هرڅه يې په خپل ډول اغيز لاره او لري يې.
انساني ليدنه او انساني طبيعت د نورو زياترو پديدو په پرتله له رنګ او دهغه له بېلابېلو ډولونو اغيزمن بريښي.
دا اغيزکېداې شي، روحي، رواني، فزيکي او ټولنيزه بڼه ولري.رنګ په انسانانو او په ټولي توګه په انساني ټولنه کې دښکلا ، دخوښيو ،ناخوښيو ، د هوسونو ، د څرګند و نو ،د وير ،دکرکې، دسينګار او مينې له غورو نه پر غورو او يا بدو شيبو خپل اغيز په مخامخ او غير مخامخ توګه پرېږدي.

لطيف بهاند

که څه هم رنګ د احساس او درک نه وروسته دپوهېدو پړاو ته رسېږي،خو دهغه اغېز خورا چټک او زیاتره تلپاتې وي.

په ورځني ژوند کې،له ډاره یې درنګ الوتل،له قهره شنه کېدل،له شرمه سره کېدل،له درده ژېړېدل،له رنځه تورېدل او نورې بېلګې د ټولنپوهنې له مخې هغه څه دي چې په هغو کې رنګ د یو چا یا کومې پېښې د کچې او اغېز اندازه لګوي.

همدا راز د ویر او غم په وخت کې د تورو جامو اغوستل،د پېغلو سور ټکری، د روحانیت سپینې جامې او نور بېلګې دپام او یادونې وړ دي.

له لرغونو زمانوراهیسې، دټولنو په سیاسي ژوند کې،د هر هېواد ،هرې سیاسي ډلې،قامونو او یا مذهبي ډلو ځان ته د پېژندنې او نښې رنګ لرلی دی.د ساري په توګه په وروستیو زمانو کې د نړۍ چپي ډلو سور رنګ ،اسلامي ډلو شین رنګ او هم ځینو ډلو سپین ، تور یا ژیړ رنګ د خپلې نښې لپاره کارولی دی.

په نننۍ ټولنه کې، د رواني ناروغیو او رواني ناروغانو د تداوي لپاره د رنګ کارونه ، خورا لوی هنر او ماهرت بلل کېږي.

په اوسني ژوند کې د دود ، مود او دیزاین خبره او په هغو کې د رنګ کارونه،په تېره بیا د کال په بېلابېلو موسمو کې د کالیو د رنګ ټاکنې د یوې خورا وړ اړتیا او پوهې بڼه پیدا کړې ده.

په پښتني ټولنو او ټولنیز ژوند کې،د ژوند د اړیکو د لړوالي،یا ښاري دود دستور نه د لري والي له امله، د رنګ د ډولونو کارونه او هغه ته پام خورا لږ دي.

په دې ټولنو کې زیاتره هماغه طبیعت ته نېږدې ،شین،سور،تور،سپین او ژیړ رنګونه زیات یادېږي او په ورځني ژوند کې یې یادونه کېږي.

رنګ پېژندونکي زیاتره وخت رنګ په درې ډوله ویشي او وایي چې لومړې ډله یې: سور ،اسماني او ژیړ دی.ددوی د وینا له مخې نور رنګونه د همدې لومړۍ ډلې له یو ځای کېدو نه رامنځ ته کېږي او نور رنګونه بیا دلومړې او دوهمې ډلې له یو ځای کېدونه جوړېدونکي رنګونه دي.

خو دلته خبره د رنګونو په فلسفه او د هغو دودي په تګلوري نه ده،دلته یوازې دکاروان له خوا په خپل شعر کې د رنګونو دکارونې او په خپل شعر کې دهغه په لفظی مهارت او معنوی ارزښتونو کې ده.

لطیف بهاند

کاروان په خپلو شعرونو کې د هر ډول رنګونو یادونه کوی،دهغو له ارزښت نه د خپلو شعري تصویرونو په جوړولو کې کوډګره ګټه اخلي،خو دده دشاعرۍ تر لوستلو به د هر لوستونکي دې ته پام شی چې دده په شعر کې شین رنګ ، ځانګړی ځای او یوه ځانګړې کارونه لري.

شین رنګ دده لپاره دهر څه نښه ده،کله د برې،کله دنوغې،کله دعقیدې او کله هم د شین سترګي دښمن:

دخدای شین کتاب،شین قران،شین زړه،شین اسمان،شین سهار، شین سمندر، شین ستورۍ.شین بګرام،شین لستونی، شین نښتر، شین سترګی هوا باز، شین ځنګل، شین درياب، شین جام،شین طوطي،شین زرغون طوطي، شین ګل،شین دستمال، شین همزولی، د شعرشین کتاب،د غزلې شین توری، د شعرونوشین همزولی،شین لباس، شین شال،شین لباس،شین د بوډۍ ټال، شین بام،شین چنډن، شنې بنفشې،شنې ټکې، شنې درې،شنه ښامار، شنې اوبه، شنې درې، شنې جامې، شنې ځیرې وزغنې، شنې ونې، شنې سترګې، شنې لښتې، شنې بڼکې،ترشعر نه شنې بورې ونې، شنې بڼکې، شنې لمبې:

سرې او شنې لمبې پر تورې شپې کړه بلې
شـــــنه پیاله په سرو منګلو کې مشال کړه

،شنې غونډۍ، شنې ویالې، شنه خوبونه، شنه غرونه، شنه لستوني، شنه دعا ، شنه ژبه، شنه پرښته، تکه شنه خندا ،شنه غبر،شنه بنګړي،شنه وینه،د زړه شنه کوتره، شنه پرښه،تکه شنه خندا ، شنه غنم، شنه لښته، په شنه چپن کې ناست پیر،شنه لاره،شنه ونه، دشنو میو ښیښه، شین خوب، شین بخمل او نورو شنو څیزونو ،حالتونو او تصویرونو یادونه.

ما چې په دې اړه هرڅه فکر وکړ او دده دښکلو شعرونو په نیلي مې هرې خواته ودانګل ومې نه شو کړای ځانته ددغو ترکیبونو او خیالاتو موخه څرګنده کړم،نو ځکه مې له خپل د خوښې شاعر پیرمحمد کاروان سره د زړه خواله وکړه،خو بیاهم قانع نه شوم،بیا مې دا پوښتنه په لیکنه بڼه ده ته وسپارله چې تر څو میاشتو وروسته یې راته ولیکل،کاروان لیکي:

لطیف بهاند

د استاد بهاند د یوې پوښتنې په ځواب کې:
ښاغلي استاذ بهاند صاحب رانه پوښتلي چې له کومو رنګونو سره مې ډېر زړه تړلی دی؟
ډېره سخته پوښتنه ده.په سر کې به دا عامه مفکوره او نظریه وړاندې کړم چې وایي:
"هر رنګ ښکلی دی خو چې په خپل مناسب ځای کې وکارول شي "غني بابا یو وخت ویلي وو:
-((له لک هازره کتابه
ما دا یو ټکی زده کړی
چې دا تورهم ښایسته شي
چې دیار په زنه خال شي ) )
ویل کېږي چې کله محمد (ص)معراج ته وخوت،نو په آسمان کې دجنت حورو پوښتنه ترې وکړه چې پیغمبره موږ ته دې له دنیا نه کومه تحفه راوړې ده؟ وایی پیغمبر (ص)موسک شو او ورته وې ویل:
-ستاسو د ټنډو او زنو دخالونو له پاره مې د بلال تور رنګ راوړی دی. ) )
انسان چې دنیا ته سترګې غړوي،له رنګ سره آشنا یی پیدا کوي.د رنګونو ترڅنګ یې،خوند لمس او احساس هم همدغسې در واخله.وایي اوبه بې رنګه دي او خوند نه لري.خو که موږ پر خپلو حافظو او حواسو زور راوړ د اوبو خوند او رنګ هم پیدا کولی شو.حمزه بابا وایي:
-دا بې کـــاري ګـــوندې څه کار نه دی.
زه به دلته دحـــمزه بابا په تقلید ووایم:

دا بې رنګي ګونـــدې څه رنګ نه دی؟
دا بې خوندي ګوندې څه خوند نه دی؟
استاد بهاند !
زه چې په ماشتوب په کوم کورکې اوسیدم،زموږ دهغې کور مخې ته د اوبو شنه ویاله بهیده.زه فکر کوم چې اول ځل به د همدې یکې شنې ویالې د رڼو اوبو رنګ زیات زما په زړه کې ځکه ناست وي چې اوبه یې ډېر تیزې او خطرناکې نه وې.ما به ډېر وخت په همدې اوبو کې لاسونه او پښې وهل،په کې لمبېدم به او کټ کټ به په کې خندیدم.د اوبو همدا

شنه ویاله زما دپاره دلوبو ګوډۍ وه.زما د ماشتوب ملګرې وه او ورسره لوبېدم به .داسې انګېرم چې د رڼو اوبو همدې شنې ویالې ماته دا احساس راکړی وي چې ګوندې زه هم یو څوک یم.یعني د یو کار کولو توان لرم ،په اوبو کې لامبم او وړي مې نه.اوبه په وړو لاسونو وهم خو نه مې لاسونه خوږېږي او نه څه راته وایي.نو د نورو رنګونو تر څنګ مې د اوبو دا بې رنګه او مهربانه رنګ هم په زړه کې ناست دی.

کله چې لږ غټکی شوم په جومات کې مې سیپاره ویله.د جومات تر څنګ بیاهم د هماغه غځېدلې ویالې پر غاړه د ګلابو څو بوټي وو.کله به چې ګلاب ګل شول،سره ګلونه به یې وکړل،نو ورېمې به یې جومات ته راتلې او دا ورېمې به د سیپارې له الف او بې سره راته ګډیدې او په ذهن کې مې کېناستې.ماشتوب ؤ ،کله کله به مې په غلا له همدې ګلابونو یونیم ګل هم راشکاوه.یونیم اغزي به مې هم وړې ګوتې خوږ کړې.دې ګلابونو ته به مورږ په کلیواله لهجه د تورې مرغۍ ګل وایه.د تورې مرغۍ له ګل سره تورې شپې رایادې شوې.

د روژو په میاشتو کې به مې پلار تر پیشلمې وروسته جومات ته تلو.زه به هم ورسره تلم.له ستورو ډک شینکی آسمان راباندې ډېر خوږ لګېدو.ما به چې ستورو ته کتل ،نو داسې به مې انګېرل چې دا هر یو ستوری ماته څه وایي،خو زه ماشوم یم او په ژبه یې نه پو هېږم.

زمورږ کلی دغرونو په لمن کې و او خړ خاورین کورونه مو وو.دا خړ رنګ مې هم بدې نه راته ،لا راته ګران و.ځکه دهمدې خړو کورونو د دیوالونو دننه د مور په نوم د ځمکې د سر پرښته وه.د پلار او خویندو په نوم د مینې موجودات وو.د کور په برینډه کې د توتکیو ځاله وه.تورې توتکۍ راباندې ګرانې وې.له دوی سره مې یو ډول زړه تړلی و.مور راته ویل چې دا به ولې هم نه،د دوی ویشتل ګناه لري ،دا فقیرې مرغۍ دي.

کله چې د ژمي وروستۍ شپې به شوې،نو یو سهار به ناڅاپه زمورږ انګړ ته دا تورې توتکۍ راغلې.غچ غچ به یې وکړ.

په آوازکې یې یو عجیب خوند و.اخ چې اوس یې هم یادوم یو ډول ورک او هېر سرور احساسوم.د هغوی دبچو تکې ژېړې تنکۍ مښوکې مې اوس هم په زړه کې خوږېږي خوږې مښوکې وهي. او په زړه کې ورکې سندرې راپیدا کوی.هر کال به چې زمورږ د کور انګړ ته توتکۍ راتلې،نو مور به مې ورته ویل:

-توتکۍ ستړې مه شی.زه به په زړه کې خوشاله شوم.ما به ویل چې زما مور د توتکیو په ژبه هم پو هېږي.پلار به مې د شاتو مچۍ ساتلې.په ځنګلونو کې به پسې ګرځېده.کله کله

به يې زه هم له ځان سره ګرځولم.د ځنګلونو له يو ډول شنه له غباره ډکه فضا مې خوښېده.رنګ رنګ ګلونه او وحشي وحشي بوټي دا ټول راته ښکلي وو.دشاتو د مچېو ملکه ،اخ چې څومره ښکلې زرين رنګ لري.چې په ګوتو کې يې ونيسې،داسې پسته مسته ده چې د پوستوالي احساس دې آن زړه ته لاره کوي.

زموږ د کور مچېو به له شا وخوا غرونو رنګا رنګ ګلونه په خپلو وزرونو کې راوړل .دا رنګونه به ټول په ماخوارړه لګېدل.پلار به مې چې په شاتو پسې د شاتو د صندوق ((ټمبکې ) )تخته خلاصه کړه ،نو کتار کتار دشاتو تختې به په کې وې.د شاتو پر ځينو تختو به توري مچۍ ناستې وې.له شاتو به خوږ بوی لتېده.د رنګ او بوی دا منظره هم راته ښکلې ښکاريده.پلار به مې ماته دشاتو شخوند په خوله کې راکاوه.پلار مې راته دخوږوالي او مهربانۍ سمبول ښکاريده.زموږ د کلي چاپېره د شنو غنمو،وربشو او جوارو کروندې وې.هر يوه موسم به يې بيل خوند او رنګ درلود.دا ښکلا به هغه وخت يو په دوه شوه چې لمر به په غرونو او درو ولګېده.

زموږ په کلي کې باغونه خو يا نه شته، که وي هم بس يو نيم دی.دا ځکه چې خلک ډېر دي او ځمکې لږې.خلک د ميوو او ګلونو پر ځای غلې دانې ته ډېر اړ دي.هغه ګل چې تر نورو غرنيو ګلونو يو څه ډېر دی،د غوجره ګل ورته وايي.د غوجره د ګل رنګ تک ژېړ دی.يو مخصوص بوی لري.کله چې ګل له بوټي راوشکول شی،بيا يې بوی هم مړ شي.دغه د غوجره تک ژېړ ګل مې ،تر نورو غرنيو او صحرايي ګلونو ډېر خوښېده.دغوجره بوټي زموږ د کلي په دښته کې داسې لښکر لښکر ولاړ وي.له يو متر نيولي،تر دوو درې متر ځواني(قد )لري.دغرونو په لمنو کې هم ډېر دي ،په پسرلي کې ددې ژېړو ګلونو څپې يوه عجيبه ښکلا راولي.د غوجره د ګلونو په وجه دې ژېړي رنګ هم زما په زړه کې ځای نيولی دی.

د غوجره دګلونو په موسم کې ديوې مور يو زوی چا وژلی و ،نو کله به چې د غوجره د ګلونوبل موسم راته،بوري مور ته به خپل شهيد زوی وريادېده.دغه لنډۍ له هماغه وخته پاتې ده:

د غوجره په ګل يې مړ کړې
چې غوجره په وطن ګل شي وژاړمه
د غوجره د ګل په باب څه نورې لنډۍ هم شته،وايي:
خدای به دې بيا راته موتاز کړي

لطيف بهاند

د غوجره تر ګل نه ژېړه خوله لرمه

په تورو غرو کې دې بـــــــندي کړم
نور مې را پرېږده غوجره ګل شوي دينه

استاد ګله !

زما د خوښې د رنګونو کيسه اوږده ده.کله راته يو رنګ دښکلا پر څوکۍ کېني کله بل.هغه د پښتو لنډۍ ده:

مخ دې په سپين کې سـرخي وايي
لکه خاسه چې پر ګلاب وغوړوينه

يا زما شعر دی:

زموږ د کلي هغه دنـــــــګه جينۍ
هغه په سپين کې غنم رنګه جينۍ

لنډه دا چې دا ټول رنګونه د خدای د کايناتو د ښکلا څرګندوی دي.مختلف رنګونه په مختلفو حالاتو کې ځانونه ښيي،ځينې حالتونه رنګونو ته ښکلا ورکوي.

لنډه دا چې په دې ټولو رنګونو کې مې د مينې رنګ خوښ دی.مينه چې له هر يوه رنګ سره لاس يو کړي،بس هماغه رنګ د رنګونو پاچا ښکاري.که په مينه چا يوه شنه پاڼه هم راکړې دګلابو او نرګسو تر سلامتي باغچې په کې ډېره ښکلا پته ده.مينه که د اوبو په بې رنګۍ کې ده،که په تکو سپينو اوښکو کې او يا په رنجو لړو اوښکو کې،بس مينه چې د هر رنګ تر شا ولاړه ده،هغه رنګ نو داسې رنګ دی چې په زړه،ذهن او اروا خوږ لګېږي.هغه زموږ د خلکو شعر ته ورته متل دی چې وايي:

خوب چې درشي،بالـــښت نه غواړي
زړه چې مين شي،ښايست نه غواړي.

لطيف بهاند

که څوک په سرو جامو کې ښه ښکاریدلي،په سره رنګ یې مین کړی یم،که څوک په سپینو ،تورو ،شنو ،ژیړو او نورو رنګونو کې ښه ښکاریدلي،له همهغو رنګونو سره مې مینه پیدا شوې ده.دا رنګونه یوازې په څوک او چا پورې محدود نه دي،تر موسمونو ،مکانونو او وختونو پورې هم ورغځېدلي دي.

که څه هم زما سر په دې خبره خلاص نه شو چې ولې د کاروان شین رنګ خوښېږي،یا ولې هغه ډېر کاروي،خو په دې پوه شوم چې دی که وغواړی د هر رنګ له رنګه دخپل شعر د رنګینۍ لپاره کار اخستي شي:

ستا له رنګ مې ډکه لپه واخیسته
خیال مې د رنګونو ژرنـدګړی دی

تاریخ په یوه جمله کې:

دلتـــه خو د سپینو جامې تورې دي
مه راځه دې چم ته قیصې نورې دي

که دپښتو دنوي او نني دنوښت او نوي کېدو لپاره آن دیوه تن نوم هم واخستل شي،هغه به هرو مرو دکاروان نوم وي.یا کولای شو ووایو چې هغه دپښتو شعر د نوي پیل پیل دی.دهغه نوم دشعر هرلېوال ته ښه شاعر او ښه شعر وریادوي.که څه هم کاروان دخپلې روحي پیاوړتیا او ذهني پوخوالي په پړاو کې لاس په لاس له هغو ستمونو او وحشتونو ځان ژغوري چې دده پر هېواد یې دپردي پوځونو یرغل او دخپل هېواد دعقایدو او تش په نوم مقاومت ولجه کوونکو راولي.دده دغه ټولې هلې ځلې او خیالونه ،پر ده او دده پر ولس باندې دغه ټولې راغلې بدې دده دشعر په کرښو کې پاتې کېږي او دده دملت په تاریخ بدلېږي.

نو له دې کېله ویلی شو چې دکاروان شعر هم احساس دی او تفکر،دهغه شعر هم تصویر دی او تصور او په پای کې دهغه شعر هم شعر دی او تاریخ:

هغه د شنې غونډۍ ننښتر دې په یاد ؟
چې یې ټټر کې توغندی ښخ و
هغه چې سپین ټټر یې لوټ لوټ و
چې یې پرو کې سور څونډي ښخ و

لطیف بهاند

زه د وطن د مهاجرو کاروان
هم له ملا هم له الحاد راغلم

اوس موږ په زړونو کې سجدې کوو ،لمونځونه کوو
جومـــــــات مو ویشتی الوتکو او محراب نه لرې

د کاروان شعر سره له خپل ټول نازک خیالۍ نه، پخپلو تورو او کلمو او ترکیبونو کې ،دخپل مهال،د خپلو همژبو د تېر مهال،نه یوازې خپل،دخپل ملت،د طبیعت او تاریخ جبر په لنډه هنري بڼه رانغاړي.کله خو دی هڅه کوي د خپل ملت د بدمرغیو گونگه او جړه غوټه،نه دتاریخي دیالتیک ،نه دنوي ټولنپوهني،نه دفزیک د بهیر دقوانینو په رڼا بلکې ددعاگانو ،لمونځونو او د لوی خدای د لوي دربار په لویو مرستو پرانیزي.
کله ناکله خو بیا دا کار د خیال او عاطفې په ملگرتیا ،دښکلو تصویري اندازونو او پښتني دود ودستور په مرسته اوارول غواړي.
دده دغه جړه غوټه،دده دغه راز،دده دغه نه رارسېدونکي خپلواکي،دده په خپل کور ،دهغه په دېرو حجرو او دخلکو په ژوند کې د جگړې او نفاق د اور جړه غوټه ده.
دده لپاره ددې غوټې یا معما اواري ،دومره لرې ده،لکه زموږ په کیسو کې د قاف غرونه او دهغو ښاپیرو ته رسېدل.
دی دا ټولې خبرې د تقدیر په غاړه ور ارتېږي، کله یې د کوډگرو کار گڼي،هغه کوډې چې لا د خوشال بابا لاس او پښې پرې تړلي و او پاړو گانې ورته نه شول موندلي او لرې لرې یې په پېښور یا هندوستان کې ورته لټول.
د کاروان په شعر کې غزل،چې دښکلاوو غرونواو دعاطفې درمندونو ته ورته دی،د خپل هېواد د تاریخ زیاتره بهیر داسې انځوروي چې کله کله دتاریخ نه په کې زیات رښتیوالي موندلی شو.
دده غزل، دده د زمانې د هیروشویو حماسو.ویاړنو ،پېغورونو او تراژیدیو هینداره ده.
دهغه غزل،دپخواني غزل په بڼه کې د نوې ساه،داسې بڼه ده چې هم مینه ناک او هم غم لړلې شبېې تغزلي کوي.

لطیف بهاند

که څه هم دده په غزل کې ځينې داسې ښکلايزې نښې،انځورونه او خيالونه سر راپورته کوي چې کېداي شي.هغه د غزل په اړه د منل شويو پخوانو ،بنسټونو په وړاندې ناسم وبريښي،خو د کاروان سندرمار يې د ښکلاپه بڼه کې داسې رنګوي چې هر اوريدونکي دهغه په اوريدلو سره حيرانه وي.

شپه ده لمر په ولجه راوړه،چې زموږ د سحر تاج شي
دصابر په لاس به وړی،ورک احمد ته د سرتاج شي

# ټولنيزه برخه

د کاروان په شعر کې تصويرونه،نه يوازې په سرو لښکرو د شازلمو د مېړني بريدونو انځورونه باسي بلکې د هغو بدمرغيو،دهغو نادودو،دهغو تالانونو،د هغو شوکماريو،دهغو وژنو او بې حرمتيو پېټې هم وړي چې تنظيمي جهادونو،تر جهاده وروسته د غنايمو د خپلولو په جګړو کې د خلکو د سر د وهلو او دهغو دمال او ناموس د تالان په موده کې په دې جګړه ځپلي ملت ور وزغمل.

کاروان د ځو انقلابونو همزولی دی،هغه د انقلاب په اور کې د سوځېدلو کليو له کنډوالو نه داسې تصويرونه را جوړوي چې کله ناکله په يو تصوير يا بيت کې د ټول هغه وحشت او يو پړاو ټول تاريخ داسې بيانوی،چې پر يوه نسل تېر شوي وي.

که د انقلابونو ستاينو او لاسي تصويرونو ، د سليمان لايق،اسحق ننګيال او کاون توفاني په ذهن کې کله کله ولکه دروله،خو د کاروان پښتني روح هغه څه ونه شو زغملي چې دده د ملت روان هغه ته نه ويلي و.

کله چې جهاد ځان شرارت ته ورساوه،کله چې دغه شرارت دملت هستۍ ته اور ورته کړ، دا نو هغه وخت و چې د سليمان لايق په وينا:روس او جهاد سره يوځاې شول،داسې چې ارموني يې وزېږاوه،دغه ارموني د ايرو،ورانۍ ، کنډوالو ،شوکو ،انساني ،د ملت او د يو ملت د هستۍ د بربادي درمندونه بادوی او د ځان په ګټه ښه حاصل ترې اخلي.

کاروان وايي:

لطيف بهاند

مات کودري يې له تاندو وينو ډک دي
د شهيدو پېغلو څه رنګين ګودر دی
سپين لباس د پرښتو ابليس اغوستی
جاهلان وايي وارث د پيغمبر دی
پوروړي يې د ژوند د سکو ډېر دي
زموږ کلي ته راغلی سوداګر دی
ماڼوګان يې خرڅوي په نهنګانو
د بې نوحه ببرۍ څه سپېره لنګر دی
د حسين او ذوالجناح وينې مباح دي
دلته هلته دا بيان د هر شمر دی
هر اغزی رانه د وينو قلنګ غواړي
د تناکو په پڼو کې مې سفر دی
بې جرسه قافلې ته مو جرس کړ
مات مې زړه کې د ظالم د غشي سر دی
ګرځوم يې در په در چېرته يې کېږدم
د ژوندون د مړي پېټی مې په سر دی
د ژوندون په هديره کې يې ايسار کړم
يو اشنا راته نکير دی بل منکر دی
هر دجال دي د مهدي کالي اغوستي
په وطن راغلی بې نېټې محشر دی
پر ګلونو باروتي خپسې ناستې
د وږمو په لمبو لولپه ځيګر دی
يتيم ژوند ايسار د غشو په سيلۍ کې
تاو له ځانه يې د زخم سور څادر دی

کاروان په دغو بيتونو او دغو شعرونو کې، هغه په ده نه هېرېدونکو تصويرونو کې د چا له خولې او يا کوم روايت نه، هغه په تصويرونو کې خپل د سترګو ليدلي حال او د هغه زغم انځوروي.

لطيف بهاند

د کاروان سټروالي په دې کې دي چې دی، دهغو نادودو او پیښو په وړاندې مات نه شو، چې هر څه یې مات کړل.

د ی ان ددغو اوږدو او پای ته نه رسېدونکو ویرونو په وړاندې نه ستړی شو، نه نا هیلی، که څه هم په هغه کې په هغه کې ددغې ستومانۍ یو نیمې نښې لیدل کېږي، خو ناهیلیتوب په ده لاسبری نه شوه.

هغه نه یوازې د کلمو روان ته ورننوزي، بلکې د هرې کلمې د زړه هینداره داسې د لوستونکو مخې ته ږدي چې هغه هم کاروان په کې ویني، هم ځان، هم د دواړوو ارمان او غوښتنه.

کاروان خپل شعر ته د خپلو خلکود زړه نه راپورته شوې چغې ورسپارلې دي.

هغه چغې چې په کلو او بانډو کې، د خوښۍ، دغم، د ناتار، دغضبونود سیلاونو او ویر په وخت او شېبو کې پورته شوی دی.

هغه چغې چې خلک ویښوي، هغه خلک چې خلک خوځوي، هغه خلک چې خلک درېدو، پاڅېدو، د ښکلاوو نه دلذتونو او ناښکلاوو نه د کرکې نښې رالمسوی.

نوي پېر

ژان فرانسو الیوتارو، لومړني څوک و چې د نوي پېر خبرې یې وکړي.

دهغه د شعر په مست اوپه یاغی سیند کې دي، چې د پښتو نوی شعر، په لسګونې نوې نوې څپې وهي.

دهغه په شعر کې د مینې عطر داسې خورېږي چې په اورېدو سره یې هر مینه ناک له حاله وزي.

دځینو شاعرانو په شعر کې تصویرونه ښکلي دي، خو هر ښکلی تصویر هر چېرې په کار نه وي، خو دي خپل تصویرونو داسې سره امیل کوی چې هم ښکلي، هم په ځای او اړتیامن دي.

کاروان په هغو شاعرانو کې شمېرلی شو، چې د پښتو دشعر بهیر سره نه یوازې اشنا دي، هغه سره پېژند ګلوی لري، هغه لوستی دي، بلکې په هغه ښه پوهېږي هم.

هغه شعر له خبرو سره ګډ کړی دی، هغه له خبرو نه شعر جوړ کړی دی.

کاروان غواړي، هغه غوښتلي دي، دشعر له لارې، د شعر په ژبه هر چا او هر څه سره وغږېږي او د زړه خواله وکړی.هغه غواړي د خپل شعر په ژبه له خپلو همژبو، خپلو

خلکو، خپل کور، کلي، وطن، ځمکې ،اسمان او ان خپل خدای سره وغږېږي.هغه غږېدلی، هغه په خپل شعر کې دې ټول سره خلوت جوړ کړی دی.

د کاروان د شعر یوه ځانګړتیا خو لا داده چې هغه هر څه ته د خپل شعر په قوت او خوږو کوډو ژوند وربښي.هغه غرونو رغونو ،هغه ځمکې اسمان،هغه د خپلو غرونو د نښترو ونو ته، هغه شپې ته، هغه ورځو ته، نه یوازې ژوند وربښي، هغوي ته عاطفه، احساس او ژبني توان ورلېږدوي.کاروان خو هغه سره غږېږي.که څه هم دغه کار تر ده نه مخکې دده څو تنو همژبو شاعرانو په تېره بیا سلیمان لایق کړی دي، خو دده د نوښت هم خورا ساده، د زړه له کومې او پښتنی دي، وګورئ:

دهغه لپاره د شعر روح او روان د هغه روح او روان سره غبرګ روان دی چې دده د ساده انسان او نه راویښېدونکي کلیوال روح پرې روان دي.

د تصویر جوړول او بیا ددغه تصویر او کلمو او له هغو نه د رامنځ ته شوې عاطفې ترمنځ د اړیکو منځ ته راوړل هغه څه دي چې هر شاعر یې نشي کولای.

هغه شان چې یو ښه روان پوه د ناروغانو د زړه خبرې کوي، دغه راز کاروان د کلماتو د یوه سحرګر او راونپوه غوندې د کلماتو د ګوګل په رازونو خبر دی.کلمې هم د هرې بلې پدیدې او وګړي په څېر، خپل ځانګړی پېچلی شخصیت لري، راز لري او ناسپړلي خبرې او پېښې.

-د ښه شاعر، ښه ځانګړتیا د هغه ژوره پوهه، پېژندنه، خبرتیا ،د خیالي خیال درلودل او تورو ته د وزن د ښېلو ترڅنګ هغو ته د عاطفې وربښل دي.

که هغه د خپلو ادبیاتو د تاریخي تګلوري، په هغه تګلوري کې د نوښتونو ،دهغه له بېلابېلو پېرونو او ځانګړو شاعرانو له خلاقیت نه خبر او په هغو پوه نه وي، نو هر څه چې لیکي هغه به نوي ورته برېښي، خو په دې برخه کې کاروان داسې برېښي چې خپل فرهنګي پور پرې کړي وي.هغه نه دچا خیال، نه مضمون او نه تصویرونه یو هم نه تکراروي.هغه هغه څه لیکي، چې لا تر اوسه زموږ په ژبه کې چا نه دي لیکلي.

وګوري، دې بیت کې دده خیال:

یو چېرې مې لوستلي وچې په یوه شعر کې دیو چا یا د یوڅه نوم یادول، د شعر خوند څو واره راکموي، خو کاروان په دې برخه کې داسې برېښي چې د شعر د تخلیق په برخه کې دې کار په لاس، خو ښکلی او نه هېرېدونکي پام کوي، څکه وایي:

دهغه په شعر کې ،دبیتونو خپلمنځي اړیکي او هم اهنګي داسې سره اوبدل شوي دي چې هرو مرو انساني ذهن،تفکر او تخلیق احساسولو ته هڅوي.داسې بریښي چې د خورا لویو شاعرانو په څېر،د ژورې جذبې او سرکشه الهام له امله ،له کاروانه هم د شعر لیکلو واک ،بېواکه شوی وي.دا په دې معنی چې ده ته یا د شعر ښاپېرۍ ،یا غیبي سندرمار،یا دځنګله شر وشور او یا بل څوک شعر وایي او دي یې یوازې او یوازې انځوروي. او هم کولای شم خپله هغه خبره تکرار کړو چې مخکې چېرې راغلې وه،هغه داچې په کاروان کې شعر راخوټیږي.

سره له دې چې د کاروان د زیاتره همهالو شاعرانو نه دنوي خیال د انځورولو په وخت کې خبره یا جړېږي،یا ټټېږي،خو د کاروان سندرمار ډېرې تندې او سختې خبرې په خپل نوښت او کوډګر قلم سره په غزلو بدلوي.

هغه د مضمون په ټاکنه کې هېڅکله ،هېڅ ډول ستونزه نه لري.دهغه خوږې او پستې خبرې، د لویو پاړوګانو په څېر چې ماران رامه وي،هر مضمون په غزلیزه هار اړوی او د ښکلو غاړې ته یې رسوي.

هغه د هر مضمون لپاره،داسې ښکلي کلمات،سندریزه ترکیبونه،نڅاګر خیالونه او اتڼچې وزن غوره کوي چې په هغه کې د کومې غوټې،جړوالي او نه پوهېدنې ځای نه پاتېږي.

دهغه دشعر لومړۍ لوستنه په لوستونکي،په تېره بیا په شعر پېژندونکي لوستونکي داسې اغیز پرېږدي چې کولای شو هغه نه هېرېدونکې ونوموو.

همدا اغیز د شعر د معنې د پوهېدنې لپاره ټولې لارې پرانیزي.

دهغه د زیاتره شعرونو لوستل په ګوګل کې دلذت زړې شیندي.

دهغه شعر تر هغه څه نه موړ ته زیات څه راکوي چې موږ یې ترې غواړو.

دهغه شعر تر هغه څه نه موړ ته زیات څه راکوي چې د کاروان په زړه کې ناست سندر مار یې غواړي.

لطیف بهاند

# دکاروان دشعر ځینې نورې ځانګړتیاوې

د عربي شاعر نزار قباني(۱۹۹۸-۱۹۲۳) په وینا چې خپلې مینې ته وايي: ستا دښکلا د انځورولو لپاره بله ژبه جوړوم.کاروان هم په شعر کې دخپل زړه خیال ته نور توري جوړوي او وايي:

ستا دیاد غزل به په شډلو تورو نه لیکم
جوړ به له نرګسو ،له ګلابو نه لغات کړمه

د کاروان شعر په نوښت کې نوښت دی.زه چې څومره هغه لولم دهغه په شعر کې د ترکیبونو او جملو لنډوالي،دژبې سادګۍ او دهغه په تورو او کلمو کې نغښتل شوی صداقت ته حیرانېږم.ما چې هرڅومره دده دکتابونوپاڼې سره اړولي را اړولي په دې مې سر نه خلاصېده چې کاروان به دڅا تر اغیز لاندې دا ښکلي تصویرونه جوړوي،خوپه پای کې دده ځانګړي سبک او نه تکرارېدونکې ژبې،له سرکشۍ سره سره ساده وینا ،په خیالونو او تصویرونو ګاڼل شوي ارمانونو:

ځم چې له لفظونو نه د شاتو مچۍ جوړې کړم
چـــــا وې ژړیدلی دلته ګل د پیېغمبر دی

په پای کې زه په دې پو شوم چې هغه د سیالیو او دښمنیو پرځای د بلبلانو کاروانو نه خوځوی،ځان دګلو کوډ کړ ګڼي او په خورا آسانۍ شعر لیکي:

بس د زړه په مراندو ،څو ملا ماتي لغات وتړم
ګرانه !شـــاعري څه ده؟اسان غوندې هنر دی

سره له هغه چې کاروان پخپله یو معتقد مذهبي سړی دی،خو دهغه دشعر یوه غوڅه او پراخه برخه د دنیایي او ځمکنیو ښکلاوو ،خوښیو ،غمونو ،دردونو ،دود دستور ،ناورینونو ،تاریخ او ټولنیز ژوند په هکله دي.
هغه په خپل ټول توان سره ،په خپلو شعرونو کې، د درد علتونه،د ناورینو لاملونه ، د ژوند دخوښیو او ناخوښیو سرچېنې ځمکنۍ ګڼي،هغه که په کلي کې دی که په ځنګله

لطیف بهاند

کې، هغه که په سمه ده که په غره کې، له اوښانه سره دی که له شپانه سره... هغه د انساني دنیا پېښو انځورونه باسي.
د هغه د شعر د ښکلاییزوو ځانګړتیاو په اړه که خبرې را یادې کړو ،د ښاپېرۍ نه پرته چې هغه هم هغه د ستاینوم او ژوندي موجود په څېر کاروي، ټولې ښکلاوې په څو ځایو کې له حورو غلمانه پرته، دده د کلي،د بر کلي،د سیمې،د ښار او لوي هېواد ښکلاوې دي.
د کاروان د شعر اتلان، که دی پخپله دی، که یې ملګري، که یې اوښان دي، که مچۍ ،که یې ښاپېرۍ دي، که حورو غلمان...هر هرڅه د یوې پېښې سره تړلي دي، هغوي او دهغوي د ژوند دستونزو او خوښیو او دهغو ي دچاپېریال هر څه څرګند تاریخ لري، هغه نه د جنت وعدې ورکوي، نه له دوزخ نه ځوک ډاروي.هلته له څو ځایو پرته د ازل او ابد خبرې نه کوي، یعني دا چې دنیا یي دي.دي ټول څه له ځانه، له کلي،د کلي له چناره پیل کوي.
-دهغه شعر د خال خال پېچلتیاوونه پرته، سره له هغه چې دهندي ادبي لارې زیاتره نازکخیالۍ او لطافت په خپلو کرښو کې را مروړي ،په بې سارې بڼې یې د وخت دروند ټولنیز پېټي هم په اوږو بار کړی دی:

ما سره یــــاري به ستا د حسن طالبان کوي
عشق د ابدالي یم تا به رام لکه هرات کړمه

د کاروان د شعر په اړه به دا خبره ځاي ونه لري، که وو ایو چې په هغه کې د ټولنیز یا سو سیالستي ریالیزم ډېرې ستې لیدل کېږي، خو دا کولای شو وو ایو چې تر هغو نه زیات ټولنیز، تاریخي –سیاسي دي، مګر په دې توپیر چې هنري تومنه یې تر هغو نه په وار وار زیاته او مزناکه ده.
له دغو ادبي ښوونځیو سره د کاروان دهنر بل د پام وړ توپیر دادي چې د کاروان شعر طبقاتي او دښمنۍ نه لري.د کاروان شعر، ټول انساني درد ، په تېره بیا دده دهمژبو او ساده هېواد والو په ځان کې انځوروي.
د کاروان د شعر بله ځانګړتیا دا ده چې هغه په ځانګړي توګه،د شعر د لیکلو یا د هغه د سوچه کولو یا دهغه د انځورولو هڅه نه کوي. دا ټول تخلیقونه د هغه د شاعرانه پښتني شډل او کوچانی روح ،دهغې سرګرداني خو معنوي پانګمني ارواحې خنداوې او ژړاوې دي، چې د شعر پښتني ښاپېرۍ دګڼو ځنګلو نه د راوړي الهام له لارې په ده کې میشتې کړې

لطیف بهاند

دي.داسې بریښي چې کاروان یوازې او یوازې دهماغو خنداوو اوژړاوو غږ په کرښو کې کري.

کاروان ددغه الهام نه دهغه صحرایي،غرني،کلیوال او د زړه له کومي پښتني خیالونه را اخلي،هغه د کوترو ،هغه د مرغیو ،هغه د شنو طوطیانوپه ژبه ښه پوهېږي.دي دهغو ساده ژبه،له له خپلې کوچانۍ اوښبنۍ ژبې سره ګډوي او له هغه نه داسې شعر جوړوي چې خپله هم په ویاړ ي او پوښتنه هم ورته پیدا کېږي:

دا غریب سړی ګورئ له غرونو پرون راغي،نن
دومره جګ برجونه،د سندرو د ښار څه معنی

کاروان په شعر کې،په خپل تخلیق کې،په پښتني ژوند کې،د پښتنو په تاریخ کې او دپښتنو دټولنیز او ټولنپوهنې د ځانګړتیاوو په پام کې نیولو سره په خپلو شعرونو کې ځینې څېرې پالي.هغه نازوي،هغو سره مینه کوي او کله کله یې خو یې لمانځنې ته کېني.

ددې څېرو زیاتره هغه تاریخي-ملي - هنري دي.دا څېرې دده د تخلیق او هنرغوره بېلګې دي.دا څېرې هم انساني دي،هم کیهانی او هم د طبیعت ښکلي انځورونه.که څه هم دده په شعر کې نا ورې څېرې هم شته،خو دلته به موږ د غوره هغو بېلګې را ولیکو:

دا څېره ملاله ده:

غـــــم مه کوه ،ژوندۍ به وي ټپې د ملالۍ
شنې ټکي که اسمان پریکه زار وغورځوي

داڅېره ادمخان دی:

دا څېره دده د زړه سندرمار دی:

کاروان لري د زړه په نوم،وړوکی بلبلک
پنـــجرې به دا وړوکي سندرمار ماتوي

لطیف بهاند

دا ځېره ناهید ده،.دا ځېره برکلی چنار دی،.دا ځېره په خپله کاروان دي.دا ځېره اوښ دی.داځېره شاعر دی.دا ځېره شاعرانه ارواح ده.دا ځېره ځنګل دی.دا ځېره باګرام دی ې خورا سرکشې،ځپه ایزې،خو ښکلې دي.هر ښه کره کتونکي یا دشعر لېوال دده دشعر له قوت نه ،دده د روح د ځپو د زور اټکل کولای شي.

د کاروان روح،هغه ناپېژندل شوې سیمه ده چې په لرغونو افسانو کې یې افسانې راغلي دي.

دا هغه دریابونه دي چې په هغه کې د ښکلا ځپې انساني ښکلاوي په وزرونو وړي.دا دښکلاوو سمندر دي.دښکلا په سمندر کې خو کله ناکله یو نیم تن ډوبېږي.څوک ډوبېږي؟یو هغه چې مین وي اوبل هغه چې په لامبو نه پوهېږي.زه خپله چې هر وار د ښکلا دغه سمندر ته ورګډېږم،په رښتیا په کې ډوبېږم.داسې انګېرم چې زه هم دکاروان دشعر ځپو په ځان مین کړي یم.

داسې روایت کېږي چې عربی او فارسی ژبې ته نوی شعر دفرانسوي او هسپانوۍ ژبو تراغیزلاندې راغلی وي.

روسی کره کتونکی شکالوفسکي د کلمو مجازي کارول د نوښت نوښت ګڼي او وايي:

کله چې کومه کلمه په نوې معنی او یا نوي ترکیب کاروو ،دنوی تصویر د رامنځ ته کېدو لامل کېږي.

دا نوښت د کاروان په شعر کې داسې لولو:

دغه ترکیب د حـــیرت او ښکلا ننبه ګرځي.

شعر له دوو پلو کېدای شي نوښت پیدا کړي:په پخوانیو قالبونو کې د قافیې،ردیف او یا د مطلع او مقطع او نورو او له معنوی پلوه په هغه کې دهغو صنعتونو کارونه چې بدیع او بیان نومېږي.د تشبیهاتو ،کنایو او استعارو په کارونې سره نوی تصویرونه او دنویو تصویرونو له لارې نوښتمند شعر رامنځ ته کېږی.

یا داسې نوښت چې طبیعت او جامد ځیزونه ځان او روح پیدا کوي.هغه انساني ځانګړتیاوې مومي:

دلته د مازدیګر مړ کېدل:

مازدیګریې په زریــــــن تابوت کې یووړ

د ګودر سندرې مړې دي،شرنګی نه شته

دلته د للمې ګلونه انساني بڼه مومي، هغه ته د ورور مینه وربښل کېږي:

زړه مې ورو د للمې د ګلونو دی
ورک د بارانونو له بهـــــیره یم.
سندریز لاسونه،
د ژبپېژندنې له پلوه د کلماتو روان ته ننوتل د کاروان د شعر یوه بله ځانګړتیا ده.هغه ددې ځانګړتیا لپاره ،ددې لپاره چې کلمو ته ځان او روح ور وبښی،دهغو زیر او بم کېږي او وايي:

راوله ! کاروان د غــــزل راولـــــه!
زه به دې رباب شم،بم او زیر مې شه

دهمدې نوښت په لړ کې څیزونو او یا دطبیعت نورو موجوداتوته دځانګړو احساساتو یا ځانګړتیاوو وربښل دي،داسې ځانګړتیا وې چې هغه څیزونه او دطبیعت نور موجودات انساني کړو وړو ته هڅوي او لمسوي.دلته ګورئ چې ځنځیر څه انساني ځانګړتیاوې لري:

وینې دی ځنځیر چې له لاسونو لکه مار تاوېږي
چـــې زړه له زړونو سره وتړي، ځنځیر اوده دی

دلته به ولولو چې ملا او سلګۍ ،څنګه احساس پیدا کوي:
د فریادونو ملا مو غبرګه ماته
د سلګو لاس یې پرپیوند تیروو

له شهیدو غزلو نو نه، سرو اوښکو ته کفن جوړول:

آشنا ظالم دی، هر یو یاد یې کفن کښ جوړشوی
زما د زړه په هدیره کې ګرځي
او له شهیدو غزلو نومې د سرو اوښکو کفن پټوي.

لطیف بهاند

لمونځ مې يې کافر به شمه څنګه دې قضا کړم
راشه چې د خپل زړه په خلوت کې دې، ادا کړم
ته د قدر شپه يې، خو په شپو کې رانه ورکه
تا پسې به ډېرې اوږدې لنډې شپې رڼا کړم
غشي راکوه چې اژدها په تندي وولم
موسکه راته مه کېږه چې نښه به خطا کړم
زه هغه مجنون يم چې مې زړه خوره کېږدۍ کړ
ګورې به ليلا به، له وچ ډاګه راپيدا کړم
دين د پښتو نغښتی د ملالې په ټپه کې
دا د ټپو ژبه به، له خدای سره آشنا کړم
ډول به شم، اتڼ به شم، شغا به شم د څڼو
بيا به طالبان د جوماتونو په ګډا کړم
خاورې يم، خو لمر به تر لاس ونيسم که خير وي
ستورې به شم پاس به، له سپوږمۍ سره خندا کړم
بيا به د غاټولو دغه لوټ کاروان راټول کړم
لاس به په سپرلي واړوم، زر به يې پخلا کړم

هېڅ شاعر په يوازې ځان هېڅ معنی نه لري او يوازې د دود او د تاريخ په بهير ځانته ديوه دريځ ټاکنه ده چې هغه ته تاريخي هويت او پېژندنه وربښي.

دود په خورا کرارۍ د بدلون امکان لري البته په هغه کې د فردي استعداد ونډه هم حتمي ده.

کومه تلوسه او لېوالتيا ده چې شاعر د شعر ليکلو ته هڅوي.څومره چې دغه لېوالتيا زوروره وي، څومره چې د شاعر تاريخي پېژندنه پياوړې وي، په هماغه کچه شعر ښکلی راځي

د اضداد سره يوځای کېدل
زما د کلي په کوڅه کوڅه کې
هره شپه به عزرايل ګرځي، دروازې ټکوي،

لطيف بهاند

د کاروان شعرونو ده ته ،دده کړو وړوته،دده حیا ته،دده ژوند ته خورا نېږدې دي.
که څوک په شعر پوهېږي دا دهغه روان دی چې دهغه په شعرونو کې خوځېږي.
هغه د پښتو مړه شعر،ناروغ شعر(د استاد شپون خبره )ته ،احساس ور وباښه،هڅه او هاند یې وروباښه او هغه یې په داسې چینې بدل کړ چې هر سندریز روح هلته لمبېدل غواړي.
تر هغه وروسته شور او خوږه ژبه ور وښودل:
هغه دا ثابته کړه چې شعر په هر څه کې ناست،ویده او ژوند کوي،یوازنۍ ستونزه په دې کې ده چې هغه سره د پېژندګلوۍ لاره وموندای شو او دغه لارې دی ښې پیدا کوي.
تخلص
د شعر په وروستي بیت یا مقطع کې د نوم یا تخلص راوړل،هغو ته د بېلا بېلو ښکلاوو ښنل،تخلص نه هر وار دنویو تصویرونو جوړول،هغه بل مهارت دی چې کاروان دیوه عاطفي کاروان په بڼه د خپل شعر په لوړه او بره روان کړي دی.
دهغه څه کم ټولې غزلې د کاروان په تخلص ګاڼل شوې دي.دده کمال په دې کې دی،چې په هربیت کې د کاروان کلمه یا یوازې،یا بل کوم لغت سره په یو ځای کېدو سره،یا جلا او یا د ترکیب په بڼه یو نوي انځور رامنځ ته کوي.
په پښتو ادبیاتو کې
کاروان په خپل شعر کې څه وویل:
کاروان په خپل شعر کې هغه څه وویل،چې د پښتو شعر اوسنیو اوربدونکو او لېوالویې له مودې مودې راهیسې د هغو اوربدو ته سترګې په لاره وو.په همدې ټاکلې پېر کې یوازې د کاروان شعر کولای شول،تر ده نه مخکې او ده سره دهمماله له تصنع او تقلید په رنځ اخته شوي پښتو شعر په زړه کې نوراني او ځلېدونکي الماس شي.
په دغه شان یو وخت کې چې نوښت زموږ د شعر له هېواد مرور شوی و ،کاروان هغه د خپلې وروا وې په بدرګه بېرته کابلی کړ،هغه یې بېرته پخلا کړ.یوازې د کاروان شعر و چې کولی شو چې د زمان په کاڼه غوږ کې د وخت په ټولو ښېګڼو،نوي هڅوونکي او لمسوونکي نوښت نه ډکې سندرې وغږوي:
خدای مهربان دی،ګوندې شات شي آشنا
زمـــا لـــــه غـزل نه دې لفظونه یوسي

هغه تقدیر ددې لپاره زېږولی دی چې د پښتو شعر روحي توان په خورا ساده، پښتني ژبه، داسې بیان کړي چې تر ده نه پر مخکو شاعرانو خدای پېرزو کړی نه و:

داغ مې د زړګوټي شوې، غاټـــــول دې کړم
پټ مې شوې په پاټو کې راټـــــول دې کړم
خیال مې تاو وي، غبرګه لـــــه ســـــتورو نه
شپون مې شوې د سپینو وریو شپول دې کړم
ډېریمه خود دار، خوستــــا د نــــاز ملنګ
سوال دې کړمه، ښکلیو ته کچکول دې کـــړم
مست دې کړم، درود دې کړم، سرود دې کـــړم
غـــــر د مـــــــرغلرو یـــــم درجار به شم
ښکلیه که په ښکلې اوښکه تـــــول دې کړم

هغه د خپل شعر له هر تصویر نه د رڼا ناوې جوړه کړې:

د شپـــــو په ځو، کې شپه پلوي شول یرغل ته تیار
ستــــــرګــې ور وبریښوه، واغونده لباس د رڼا
ستا د کاروان په مخ کې بیا د تیارو زور ولاړ دی
ساقي، تر مورګو پورې ډک راوړه ګیلاس د رڼا

هغه د خپل شعر له هر تصویر نه د ښکلا ادې جوړه کړې ده:

زړه مې پاس د زانې په وزر پورې تړلی دی
پام کوه !دغشو واله !زه هم دچا خیال یمه

هغه د خپل شعر له هر تصویر نه د مینې بګرام جوړوي.
بېځایه نه ده چې د (( ستوري د ادب په آسمان کې ))د کتاب لیکوال د کاروان د پېژندنې په برخه کې، دهغه پېژندنه د شعر پېژندنې نه راپیل کوي:

لطیف بهاند

((ده په شعر کې د اوسني شعر تر ټولو بنسټيز توکي ،تخيل،انځور،عاطفه،ښکلا او آهنګ په لوړ هنري دود په ځپو راوستي دي))-۱وفا،داود، ستوري د ادب په آسمان کې،پېښور،دانش خپرندويه ټولنه، ۱۳۷۹کال،۱۲۷مخ.

# اوښ او دکاروان شعر

که څه هم له اره د شعر وزن يوه داسې خبره ده چې لا تر اوسه هم د هغه په هکله ځوک غوڅه پرېکړه کولی نه شي،خو يو شمېر د هغه سرچېنه ډله ايز کار،بله ډله يې د مرغانو دچغار او عربان د خپل شعر د وزن سرچېنې په دښتو کې،د اوښانو د پښو نه د راپورته شوي سندريز خوځون بولي.

دغه پوهه بيا عربانو د عروضو په نامه ونوموله.د لومړي وار لپاره ددغې پوهې اصول په ۱۷۵ سپوږميز کال کې خليل بن احمد وړاندې کړل.

عروض د فعول پر وزن د شعر د وزن د تللو دنده لري.يا په بله وينا عروض د موزون او ناموزون شعر بېلول دي.عروض دشعر د وزن ټاکنه ده. او وزن بيا په ټاکلي وخت او ځای کې د غږونو ځای په ځای کېدل دي.

دا خبرې مو ځکه دلته داسې را وسپړلې چې اوښ،اوښانه او اوښبه او نور کارواني ژوند د پيرمحمد کاروان د شعر يوه غوره برخه جوړوي.

تر هرڅه دمخه دپيرمحمد له خوا د کاروان دتخلص ټاکنه هم کېدای شي همدا ريښه ولري،دی وايي:

ته وا مانه يې وژلــــي ســــل اوښـان دي
د منـــــزل د نيـــمې لارې لوټ کاروان يم

خدای چې راکړه برخه د ښار ياره مه کړه رخه
خـــوار غريب اوښبه يم،له ښکلا سره غږېږم

له سلـــــــــکو يې ډکوه چې سندريز شي
تش خو مه شـــــه،دخپل يار له درده توري
بيا مې خيال ته شـرنګيدلي اوښان راغلل

لطيف بهاند

بیا به پرې کانـــــدي مهار له درده توري

دا چې پرانزي نن دې خیال د ښا پیریو تنۍ
کاروان د ښکلي اوښ له اوښکو نه الهام اخستی

شعر څپله مست اوښ دی، خپل څښتن ته نه دی رام
یو سمندر شور دی، ذره نه لري آرام
ویښ و له مستۍ نه کړی شپه یې دي خوړلي
ده د خپل څښتن د خیال په څوري کې بادام
منډې وهي منډې د ښکلا په غرو رغو کې
کله ترې په لاره پریوځي، درونډ بار د پیغام
ماته یې نتۍ د غلامۍ، پرې یې مهار دی
هېڅ د اوښبانه په خوښه نه اخلي یو ګام
یوځل که د خپلې خوښې اوښې باندې چو شو
خدایږو په ډانګونو که ترې پاڅوئ بدنام
ناز به باندې نه کوې، خو نیاز ورسره بویه
شعر اغا بادار دی او شاعرې دی غلام

راوړي به ښـــــا پیرۍ درته ګلونه د الهام
بس بار به دې کاروانه وي اوښان په ترنم

ځان ستاینه
چې څوک یې نه مني هوښیار به وي مستان خو نه دي
کنه کاروانه !په غـــــــزل کــې دې بـــــــلا کړې ده

ګـــــــــوړې او شــــــــکرې دې سندرو ته ور ګډې
ښکاري چې کاروانه د هـــــــندو دوکان دې ګرو دی

لطیف بهاند

کـــــاروانـــه غزلبوله !که دې توري شول تمام
له غاړو نه به نجــــــونې درته هار وغورځوي

هغه ان سقاط او خیرات له سندرو کوي او وايي:

کاروان که ومـــــري، سکـــــې هم نه لري
خوږې ســــــندرې یې په سقــــــاط منمه

تور دیوان یې سلامي کړل،د ښکلاوو ښاپیرۍ ته
غـــزلتوري د کاروان دي، که غمي د سلیمان دي؟

غزل یـــــې وا نه وړي چې عقل به دې وتمبوي
دې لیوني کـــــاروان دې لپې لپې بنګ خوړلي

کاروان غزلبـــــوله، که دې توري شول تمام
له غاړونه به نـــــجـــونې،درته هار وغورځوي

ګوړې او شــــــکرې دې سندروته ورکړې
ښکاري چې کاروانه،دهندو دوکان دې ګرو دی

لطیف بهاند

# ښاپیرۍ زما همزولې

نه پوهېږم چې څومره شاعر یم او څومره نه، زه چې اوس د خپل تېر ژوند په خاص ډول د ماشومتوب شېبې رایادوم، نو خپل ځان له اوس نه زیات په ماشومتوب کې راته ښه شاعر ورېښي. همدا اوس هم د اوسنیو شېبو، تراژیدیو، خوښیو او ښکلااوو د ښې انځورونې لپاره د خپل تېر ژوند په تېره- تېره د ماشومتوب رنګینې شېبې په پور اخلم او د خپل شعر د کورګي سندریز دېوالونه ترې جوړوم. په ماشومتوب کې چې د تورو او کلماتو ښاپیرۍ مې په حکم کې نه وې، نو ماشوم شاعرانه کیفیت خو مې په حکم کې و. د ښاپېریانو کیسې مې دومره رښتیا ګڼلې چې د شپې به مې په خوبونو کې لیدې. په خپل ماشوم ذهن او خیال کې به مې یوه ښاپېرۍ جوړوله او ما به وې چې د وسپنې څپلۍ به ورپسې زړوم. په ځنګل کې یو ناست ملنګ به اسم اعظم راښیي، دعا به راته کوي او بیا به د ښاپېریو د وزرو جامې په راس لائي. په ماشومتوب کې له فطرت او تخیل سره له تصنع او تعقل نه پاکه مینه کېږي او همدا مینه د سړي راتلونکی هم جوړوي.

کورنی چاپېریال هم د ماشوم په راتلونکي اغېز لري، که څه هم نه مې پلار شاعر و او نه مې مور شاعره وه، خو بیا هم مور او پلار مې ما ته ډېر شاعرانه کیفیتونه ښښلي دي.

زما د مور د ماشومتوب او ځوانۍ ژوند ټول په غمونو او تراژیدیو کې تېر شوی دی، تراژیدي مې له مور نه په میراث وړې ده او تر ننه له تراژیدي هنر سره زیاته مینه لرم. تراژیدي موسیقي مې خوښېږي، تراژیدي فلمونه، افسانې، ناولونه او شعرونه مې خوښېږي. زما د مور څلور وروڼه یو په بل پسې مړه شوي وو. کله چې زه لږ څه غټکی شوم، نو مور به مې د نورو افسانو تر څنګ، د خپلو وروڼو د مرګونو کیسې راته کولې. له کیسې وروسته به مې مور ژړل، ما به مې مور ښکلوله او زارۍ به مې ورته کولې چې بس دی، مورې مه ژاړه. کله- کله به مې مور د خپلو وروڼو په یاد یوه نیمه لنډۍ په غلي اواز ویله. د مور اواز به پر ما خوږ لګېده او ما ته به یې ژړا راوسته. ما مخکې وویل چې زه په ماشومتوب کې پر تورو او کلماتو لاسبری نه وم، کنه ډېر

کیفیتونه به مې د تورو او کلماتو په زور شاعرانه کړي وو. یوه خاطره دلته لیکم، چې شعر ته ډېره ورته ده:

مور مې د دویم پوړ په کوټه کې ټال راته جوړ کړی و، زه به په ټال کې زنګېدم، د دویم پوړ د کوټې له کړکۍ به مې مخامخ غرونو ته کتل، مخامخ غرونه به هم زنګېدل. زه نه پوهېدم چې دا غرونه څنګه زانګي؟ کله چې به زه له ټال نه راکوز شوم، دوی به هم ځای پر ځای ودرېدل. یوه ورځ نرۍ- نرۍ باران اورېدلی و، زه په ټال کې زنګېدم، ناڅاپه مې مخامخ غرونو ته پام شو، د غرونو پر لمن د بوډۍ ټال (شنه زرغونه) غوړېدلی و، غرونه زنګېدل، ما له ځانه سره وویل چې دا به د غرونو ټال وي او غرونه به په دې ټال کې زانګي، پر غرونو راخوره شنه زرغونه مې د غرونو ټال باله.

په همدې ډول له عجیبو شاعرانه کیفیتونو سره رالویېدم. پلار مې ډېر دیندار او امانتدار سړی دی. ډېر وخت به په نیمه شپه کې د تهجد لمانځه ته راپاڅېده. کله- کله به یې زه هم له ځان سره پاڅولم. د نیمې شپې چوپتیا او د ستورو ځلا به راباندې ډېره ښه لګېده. کله- کله به یې په اسمان کې هغه سره نژدې شوي دوه ستوري راښودل. یو ستوری به غټ، تک سپین و. پلار به مې ویل چې دا لیلا ده. بل ستوری به له سپین غټ ستوري نه لږ وړوکی و او سوربخون رنګ یې و. پلار به مې ویل چې دا مجنون دی. دوی دواړه یو پر بل مینان وو او دواړه د خدای په قدرتونو اسمان ته ختلي دي. دوی په کال کې یو ځل غبرګ سره ورکوي او که چا غبرګ په غبرګ یو ځای سره ولیدل، چې هر سوال یې له خدای پاک نه وکړ، سوال یې قبلوي. ما به په زړه کې ویل، کاشکې زه یې غبرګ په غبرګ سره ووینم. بیا به مې په زړه کې ویل ښه که غبرګ په غبرګ یې ووینم، نو کوم سوال به له خدایه کوم؟ سوال به مې نه خوښېده. په دې سوچونو کې به خوب وړی وم.

پلار مې د شاتو له مچیو سره ډېره زیاته مینه لرله. کله به چې ژمی تېر شو، زموږ کډې به د غرونو باندې ته تلې. زموږ غرونه د ښېرېو په ګڼو ځنګلونو کې پټ دي، ځینې د نښترو ځنګلونه هم لري. پلار به مې د ځنګل په لمن کې د اوبو پر غاړه د شاتو مچۍ خارلې. د اوبو غاړې ته به یوه- یوه مچۍ راتله، اوبه به یې په خوله کې اخیستې او د ښېرېو په ځنګل به ورننوته. پلار به مې هغه ځای معلوم کړ. بیا به د ښېرېو په ځنګل کې ورپسې ګرځېدو.

کله ناکله به مو د ښېرېو په لویه ونه کې د شاتو د مچیو کور پیدا کړ، مچۍ به د لمر د وړانګو په غبرګ کې لکه ګرځندې سپرغۍ د لویې ونې سوري ته ورننوتې او ځینې به

ترې راوتې. دا انځور اوس هم زما په ذهن کې ژوندی دی او اوس هم دا ښکلا په لفظونو کې نه شم نغښتلی. پلار به مې د څېرې لویه ونه د شاتو په مچیو پسې سورې کړه. تختې- تختې شات به په کې وو، د شاتو د مچیو په ټوپکي کې به یې ګوتې وهلې، یوې نیمې به پر ګوتو او لاسونو وچیچه، خو د پلار به مې هېڅ چرت هم نه خرابېده.

کله به یې چې پر مخ او یا له سترګو سره نژدې وچیچه، نو ما ته به یې ویل چې دا لشې رانه وباسه. ما به لشې ترې راوایستې. کله چې به زه د شاتو مچیو وچیچلم، نو ما به ژړل، پلار به مې راته ویل، چې ستنه یې درته ولګوله، دا د هر مرض دارو دي.

پلار به مې د شاتو د مچیو په منځ کې یوه اوږده زرینه مچۍ پیدا کړه، ما ته به یې راکړه. ویل به یې چې ورو- ورو یې په ګوتو کې ونیسه. دا ملکه ده او چیچل نه کوي. ما به ملکه ورو په ګوتو کې ونیوه، څومره پسته وه. زړه به مې یو ډول پرې خوږ شو. پلار به مې د واسکټ له جېبه کوچنۍ بیاتي راواخیسته او د ملکې وزر به یې پرې کړل. بیا به یې د شاتو کندو ته واچوله. د شاتو د کندو سر به یې خلاص پرېښود. مچیو به د شاتو د کندو پر سر ګرځنۍ کاوه او ډلې- ډلې به د کندو ګېډې ته ورننوتې. په یوه شېبه کې به ټولې مچۍ د شاتو کندو ته ننوتې، د شاتو د کندو سر به یې وتاړه. د مچیو له کور نه به یې د شاتو تختې راپرې کړې. ما ته به یې یوه کوچنۍ تخته شات راکړل، چې دوه درې ټوټې به مې وخوړل، موړ به یې کړم. یوه شېبه وروسته به شاتو تږی کړم. د ځنګل په لمنه کې به پر یخه چینه خملاستم او یخې اوبه به مې وڅښلې. پلار به مې له شاتو نه دېګۍ ډک کړ او له ځنګله به روان شوو.

پر لاره به خوشحاله- خوشحاله راتلو. زما مخ به د شاتو د مچیو له لشو نه پړسېدلی و. سترګې به مې تنګې شوې وې. پلار به مې مخ ته هنداره راته ونیوه. ما به په خپل ځان پورې خندل. د هر څه په باره کې به مې له پلاره پوښتنې کولې. له پلاره مې پوښتنه وکړه چې د شاتو مچۍ شات څنګه جوړوي؟ پلار مې راته وویل: مچۍ ګلان په ځانګونو کې راوړي. دننه په صندوق یا کندو کې یې پاڼې پاڼې ږدي. د ګلونو د پاڼو له پاسه ملکه ورو- ورو ګرځي. له کومو ګلپاڼو نه چې ملکه تېرېږي، هغه ګلپاڼې په شاتو بدلېږي.

زموږ د کور په هره کوټه کې دوه یا درې د شاتو صندوقونه چې موږ یې ټمبکې بولو- وو. زموږ کور ته به له سهاره تر ماښامه مچیو په وزرونو کې رنګ رنګ ګلان راوړل.

لطیف بهاند

ګلپاڼې په ځانګونو کې مچۍ ډېرې ښکلې ښکارې. زه د دويم پوړ په کوټه کې ويده کېدم او زما کټ د شاتو د مچيو له ټمبکې سره جوخت ايښی و. د شپې به مې له کړکۍ نه د ستورو ډک اسمان کوت. د ليلا او مجنون ستوري به مې کتل، چې څومره سره نژدې شوي دي؟ بيا به مې د شاتو د مچيو زمزمو ته غوږ کېښود.

کله- کله به مې د ټمبکې تخته ورو په څپېړه ووهله. د شاتو د مچيو ځوږ او زمزمې به لا پسې ډېرې شوې. ما به په زړه کې ويل چې اوس به د ډېرو ګلپاڼو له پاسه ملکه تېره شوې وي او اوس به ډېرې ګلپاڼې په شاتو اوښتې وي. په زړه کې به راوګرځېدل، کاشکې زه د شاتو ملکه وای چې ګلپاڼې مې په شاتو بدلولای.

پلار مې د شاتو د مچيو په باره کې دا هم راته ويلي وو، چې دوی ډېرې اصيلې دي. په کوم کور کې چې بې ديني او بې اتفاقي راشي او يا ظالم پاچا پر وطن واکمن شي، نو دوی له هغه کوره ځنګل ته ځي، د شاتو مچيو د ښکلي پيغمبر د ژړا تاب نه درلود. د پيغمبر اوښکې يې وځېښلې او لوی خدای د شاتو جوړول پرې ولورول. پلار مې ويلي وو چې د شاتو د مچيو د ساتلو لپاره بايد په زړونو کې پاکي او تقدس وساتو. دا خبرې مې له پلاره اورېدې او زما په ياد کې پاتې کېدې. زما د ژوند شپې لکه ګلپاڼې په غېږ کې مچۍ تېرېدې. اوس نو زه زلموټی شوی وم او ورو- ورو د بلوغ درشل ته ورنژدې کېدم. اواز مې لږ ډډ شوی و. خو لا تر اوسه مې هغه ډول خوبونه نه وو ليدلي، چې د بلوغ په باب مې په منية المصلي کې لوستي وو. يوه ورځ مې پلار د مچيو د ټمبکې (کندو ) تخته خلاصه کړه. د شاتو د سپينو تختو د پاسه توري مچۍ ګرځېدې. په يوه لويه سپينه تخته کې دوې غوټې وې. پلار مې ويل په دې هره غوټه کې يوه نوې ملکه اوسېږي. که چېرې دا غوټې داسې پاتې شي په دې کور کې به دوې نورې ملکې هم پيدا شي او بيا به د دې کندو نظام خراب کړي. نوې راپيدا شوې ملکې به يو- يو ټولی مچۍ له ځانه سره وباسي او دا کندو به کمزوری شي. پلار مې چاړه راواخيسته. په داسې احتياط يې غوټې غوځې کړې چې په غوټه کې د ملکې چنجی زخمي نه شي. پلار مې د کندو له تختې نه راتويه شوې خاوره لمده کړه. لمدې خاورې خوږ بوی وکړ. پر ما د شاتو بوی او د لمدې خاورې بوی ډېر خوږ لګېده. پلار مې په کندو پسې تخته بنده کړه. د تختې پر درزونو يې لمده خټه وموښله.

يوه اوونۍ وروسته د همدې ټمبکې له سوري ګڼې- ګڼې مچۍ راوځي او په هوا کې ګرځنی کوي. له ټمبکې نه يو لوی ټولی مچۍ راووتې. مچۍ په هوا کې تاوېدې.

غوښتل يې چې د هغه لرې ځنګله په لوري لاړې شي. خو پلار مې د هغوی مخه ونيوه. د ورو شګو ګوزارونه يې پرې وکړل.

مچۍ يې زموږ له کور سره نژدې د توت ونې ته وروګرځولې. مچيو د توت په يوې هسکې څانګې پورې ټوپکی جوړ کړ. يوه مچۍ په بلې مچۍ پورې نښتې وه. د لمر شغلې پرې لګېدلې او دوی وزرې رپولې، ډېرې ښکلې برېښېدلې. کله به باد ټوپکی وښوراوه. ما وې چې اوس به د ماشومانو د شګو د کوټنۍ غوندې د مچيو دا کور هم راړنګ شي. خو نه پوهېږم چې ولې نه ړنګېده. پلار مې له وچ او تش کدو نه جوړ شوی د مچيو د راايسارولو لوښی هم له ځان سره توت ته وخېژاوه. زه هم توت ته پاس وروختم. پلار مې د ډېرو مچيو په منځ کې ملکه لټوله، تر لږې شېبې لټون وروسته يې د شاتو ملکه پيدا کړه. ورو-ورو يې په ګوتو کې ونيوه. ما ته يې وويل چې له جېبه مې بياتي دروباسه. ما يې له جېبه بياتي راوايسته او د ملکې وزرونه مې پرې کړل. پلار مې ملکه له کدو نه جوړ شوي تش لوښي ته واچوله. بيا يې ورو-ورو په لپو-لپو مچۍ تش لوښي ته پسې ورواچولې. د مچيو ډک لوښی يې له ځان سره راکوز کړ. د نوې ملکې دا لوی ټولی مچۍ يې په يوه بله خالي ټمبکه کې سمبال کړې. څو تختې شات يې هم ورته کېښودل، چې څو دوی خپل شات جوړوي، په دې تيارو شاتو به څو شپې ورتېرې کړي. ما مې له پلاره پوښتنه وکړه چې تا خو څو ورځې وړاندې په هغه ټمبکه کې د ملکې دوې غوټې غوڅې کړې، نو دا درېيمه ملکه له کومه راپيدا شوه؟

پلار مې په خندا کې راته وويل: دا ملکه ما پرايښې وه، ځکه چې هغه ټمبکه ډېره زوروره وه، ما وې چې يوه بله ټمبکه هم ترې جوړېدای شي. په دې لا دوې ورځې پوره نه وې تېرې، چې هماغې اولنۍ ټمبکې بيا شورش وکړ. يو کوچنی ټولی مچۍ ترې رابېلې شوې او په نژدې دېوال پورې پنډې شوې. پلار مې ملکه پکې ونيوه. دا ځل يې وزر پرې لنډ نه کړل. ما ته يې راکړه او راته ويې ويل چې په ورغوي کې يې ورو-ونيسه، چې درنه مړه نه شي. ځکه چې د ملکې مرګ د يوې پاچاهۍ د پاچا مرګ دی. ما ملکه په ورغوي کې ورو ونيوه، زما په ورغوي کې يې ورو-ورو وزرونه رپول. د وزرو له رپولو سره يې ان زما زړه تخناوه. پلار مې راته وويل چې دا ملکه يوسه او د غنمو په شنه کرونده کې يې خوشې کړه. زما په زړه کې يو سوال غځوني کولې. پلار مې نور څه هم راته ويل، خو ما نورو ويلو ته پرې نه ښود او ترې ومې پوښتل:

پلاره ! تا هغه بل ځل ویل چې هغه بله ملکه ما پرایښې وه، چې نوی کور جوړ کړي. نو دا ملکه ولې نوي کور جوړولو ته نه پرېږدې؟ پلار مې موسکی شو. ویې ویل چې ته څومره ډېرې پوښتنې کوې. بیا یې په ځواب کې راته وویل: ځکه چې یو خو دې ملکې ډېر کم شمېر مچۍ له ځان سره ملګري کړې دي، یعنې یو پاچا باید ډېر رعیت ولري او د دې ملکې رعیت ډېر کم دی، بله دا چې هغه پخوانۍ تمبکه کمزورې کېږي. د دې ملکې غوټه ما نه وه لیدلې. کله- کله د ملکې غوټه په پټ ځای کې وي. له سړي نه پاتې شي. زما د سوال ځواب وشو. اوس نو زه په خوشحالۍ له کوره راووتم. ما ته ځان ډېر غټ برېښېده. ځکه له ما سره د مچیو پاچا ملګری شوی و. زه د غنمو تکې شنې کروندې ته ورسېدم. په ییلو پښو، په تکه شنه کرونده ورګډ شوم. شنه او تنکي غنم زما په چاودو او ییلو پښو زخمي شول او خوړ بوی یې په هوا کې خپور شو. دا بوی هم د شاتو او لمدو خاورو د بوی په شان پر ما خوږ ولګېد. ورو- ورو مې خپل ورغوی پرانیست. اوږده زرینه او ورېښمینه ملکه مې پر ورغوي ګرځېده. وزرونه یې هم جوړ وو. خو خدای زده چې ولې نه الوته. زما ډېر زړه پرې وخوږېده. ورغوي ته مې ورو پوکی وروکړ او په پوکي سره مې د شنو غنمو غېږې ته والوزوله. کور ته په خوشحالۍ راستون شوم. بیا مې له پلاره پوښتنه وکړه چې ولې دې ملکه له کوره لرې شنې کروندې ته راباندې یووړه؟

پلار مې بیا په موسکا کې راته وویل: "ځکه چې له کور او نورو تمبکو لرې وي. که دلته نژدې مو ازاده کړې وای، بیا به کومې تمبکې ته ننوتلې وای او یوه جوړه پاچهي به یې خرابه کړې وای. بله دا چې د ملکې مرګ لویه ګناه ده. بس د پاچا مرګ دی. ما وې چې ملکه ډېره تنکۍ وي، په شنو او تنکیو غنمو کې به له بل سپېره ځای نه خوشحاله وي او تر ټولو لویه ارزو مې دا وه چې ګوندې د مچیو یو داسې لښکر پرې راشي چې ملکه یې مړه وي او یا یې ملکه نه وي، نو دا به یې ملکه شي او ورانه پاچهي به پرې جوړه شي".

زه اوس هم داسې انګېرم، چې زما د شعرونو او سندرو لفظونه هغه مچۍ دي چې د ښایست او شعر په شنه کرونده کې یې زرینه ملکه ورکه کړې ده. زه تل د دې زرینې ملکې په لټون کې لالهانده ګرځم. زما همځولې ښاپېرۍ راته ویلي دي چې دا ملکه ما لیدلې ده. ما هم د خپل خیال او خپل شعر د ښاپېرۍ لمنه نیولې ده. د خیال او ښکلا په ډېرو جزیرو یې وګرځولم، خو لا مې موندلې نه ده. تر هرې پلټنې وروسته ښاپېرۍ کټ-

کټ خاندي او د یوه نوي پړاو د پلټنې بلنه راکوي. کله- کله مې شک پیدا شي چې هسې نه ملکه زما د همځولې ښاپېرۍ په ورغوي کې وي. که خدای کول سبا به د ښاپېرۍ ورغوی پرانیزم. ګوندې زرینه ملکه په لاس راشي او د سندرو یوه کوچنوټې پاچهي راته جوړه کړي.

پېمینه
کاروان

دهغه په شعر کې، کلمات او ترکیبونه یو ذهنی سندریز پڅواک لري.

کاروان په خورا نرمه ژبه، دهغه دکتاتورانو په وړاندې سندریز غږ پورته کوي، چې هر چېرې او یو ډول نه یو ډول ځان د ازادۍ ویاند ګڼي.

هغه د جلادانو په وړاندې د کرکې دیوالونه جوړوي.

هغه، هغه جلادان او دیکتاتوران دي، چې په خپله د ازادۍ اصلي قاتلان دي.

دهغه په شعرکې مینه او حماسه اوږه په اوږه روان دي.نه، نه روان نه دي، کوربانه دي، کوربانه نه دي، نغښتي دي.

کاروان، د یوه ستر کوډګر په څېر موږ دخپل شعرد سحرګرو ترکیبونو په سندریزو اوازو او شر وشور کې، له کږو وږو، لوړو ژورو خو خوندورو لارو نه تېروي او د تصویرونو هغه کوډګر او خوب کې لیدلي جنت ته مو رسوي، چې یوازې او یوازې د کاروان په شعر کې یې لیدلی شو.

د کاروان شعر د مرغلرو، هغه امیل ته ورته دی، که یوه دانه یې نه وي، یا لویه او کوچنۍ وي، یا یې رنګ څه تت او روښانه وي، نو ټول امیل به یې بل رنګه بربښي.

د انسان د رښتیني جوهر برالا کول د هنر لومړنۍ دنده ده.

که زه په موسیقۍ پوهېدلاي، مابه د کاروان د شعر، ټول سندریز رازونه، چې خورا بې شمېره دي، د سندرو په ژبه دهغه د جګړمار اولس لپاره سندرې کړې وای.مابه دهغه شعر، دشعر سندره بللې وای او په هغه کې به مې دهغه د سندریزوالي ټول اړخونه ښودلي وای.

دکاروان شعر، هغه مرغه ته ورته دی، چې یو برید هم نه پېژني.هغه، نه دفصلونو، نه د دریابونو، نه د غرونو او نه دبل کوم برید، پروا لري.دهغه شعر، د افسانو او تاریخ، له درنو، غمجنو او مینه ناکو پېښېو سره یوځای، د زړونو دالانونو ته رسوي.

لطیف بهاند

دهغه لپاره شعر،یعنې نوی والی،شعر یعنې بدلون،شعر یعنې،اوښتون،شعر یعنې،دخلکو برى،شعر یعنې د ښکلا څوکه،شعر یعنې د شېبو ابدي کول.

ولې څوک،کاروان ښه شاعر بولي؟

داځکه چې کاروان شاعر دی،بله داچې د هغه د شعر روان،د شعر د لېوالو له روان سره هم اهنګه او همغږی دی،بیا داچې دهغه په شعرکې نغښتی ارمان،په رښتیاهم د هغه چا له ارمان سره اړخ لګوي چې ،هغه یې خوښېږي،دده په شعر کې نغښتل شوې او بیا په سندریز ډول بیان شوې وینا ،هغه وینا ده چې دده دشعر لېوال هغه غواړې خپله ووایي،خو دوی یې ویلی نه شي،که ویلی یې هم شي،داسې ښکلې،پېیلې او زړه راښکوونکې یې انځورولی نه شي.

هغه،شعر دشاعرۍ لپاره نه لیکي،دځان ویاړنې لپاره هم نه،هغه شعر د ژبې د شعري پانګې او د زړونو دتسل لپاره لیکي.

دکاروان مخکې به چا ،دومره په سادګۍ دپښتو ژبې له ښکلا ییزه توان نه،ګټه اخیستې نه وي.

چېرته د سندرو کاروان واړوم

زه چې کله بې هنداروا وبې تصویره کیږم.زه چې کله غواړم دردمې په لفظونو کې ونغاړم.زه چې کله غواړم چېرته یا چاته ځان بیان کړم.زه چې هغه وخت دبارانو نوله بهیر نه ورک کیږم اوزړه نه دللمې دګلونوورور جوړوم ،نو دکاروان دغزلو تیریدونکې اونه ستړیدونکې کاروان ته غوږ غوږشم.زه چې کله کوم خم ته تکیه اویارته مخامخ شم،نو پوهیږم دچا پښتنې ارواح په ما راګرځي اودلرو لرو کلیوتېپې مې په پښتنې یکه زارتر غوږو کیږي.زه چې کله اوس،اوس په تصور کې د پښتنې ستومانه زړه له تل نه راجګ شوې فریادونه اورم،نوپه خیال کې مې په رښتیا سره زموږ ددنګو غرونودڅېړیو دنګې ونې تیریږي.نو په دې ګونګ ماحول کې یوازې دکاروان خبرې کوونکې او افسانه بیانوونکې چنار ته غوږ شم.هغه چنار چې روح یې دلوی ګړنګ په شان دنغمو له ازانګونه ډک دی.نه پوهیږم چې دنغمو له ازانګو نه ډک دی او که یا کوم غیبي سندرمار په کې غږیږي؟خو دا غیبي سندرمار په کوکو نارې وهي چې:

راشه درحمت بارانه ښار اخیستی اور دی

ژوند لکه دکلي دچنار اخیستی اور دی

راشئ زما اوښکې ورله یوسئ بلبلانو

لطیف بهاند

سوځي درنه ښکلي لاله زار اخيستی اوردی
نه يې د چالاس لکه امېل له غاړې تاوشو
غاړه کې يې خپل دغاړې هار اخيستی اوردی
وچې شونډې گرځئ بدبختانو ميخوارانو
اوښکې دانگور وسوې انار اخيستی اوردی
لرې شه لمنه به دې وسوځي طبيبه
پرې يې ږده چې څه کيږي پرهار اخيستی اوردی
ماوې گلابي جامونه راکړه راته وې يې
واروکړه تلوار مه کړه ستا وار اخيستی اوردی
سوې د کاروان سندرې چا په زمزمه کړې
گوتې دمطرب وسوې شاتار اخيستی اوردی

هوکي اوردی خو په دی نه پوهيږي چې دا اور په خپله هغه چا بل کړی دی چې ځان درحمت باران گڼي.هغه حتی په دې هم نه پوهيږي چې همدې باران حتی ژوند دکلي دهماغه يوازني چنار په شان اور وراچولی دی ،نه يوازې دکلي چنار،دکلي لاله زار،دمين دغاړې هار،دکلي انگور واوانارهم اور اخيستي دی.

زموږ شاعر،هغه شاعر دی چې سندرې يې وينځې او غزل يې غلامان دي.هغه شاعرچې خوب تښتيدلو ته دغزلو اوقصيدو کاروانونه رسوي.دفطرت مور دنغموغوټې ورته ساتي.داشاعرسره له هغه چې په مينه کي تر بل هر مين نه ډوب دی،مگرستمگر ماحول دی دېته اړباسي چې خپل نازک غزل ته داسي تشبيه پيدا کړي:

(دښو اوشونډو ياد هم رانه هير دی
——جوړ غزل مي له خنجر او له پرهر دی).

دا هغه شاعر دی چې شهيدې پيغلي يې په ماتو کوديو کې له گودرنه داوبو پر ځای ويني وړي.دا هغه شاعر دی چې دکلي ماشومتوب يي شهيد شوی دی.نوله دې کبله دی چې دتفکر او احساس دپراخ اسمان په لمنه کې ددغې راخوټېدونکې چېنې او غيبي سندرمار په باب خبرې،څېړنې او څه ليکل به اسانه کار نه وي.کلونه،کلونه کيږي چې ما دشعر په باب خپلې زده کړې اوڅېړنې پيل کړې دي .خو داسې يو تصوير ،داسې يو انځوراوداسې يو تعريف چې زما تنده پرې ماته شي اوخوند راکړي نه ليکی شم اونه ويلی شم.ډير وخت مي هغه په سندريزو توروکې داحساس، عاطفې اوتفکرنه

تکراريدونکې جره غوټه ده.داغوټه چې څومره جره وي په هماغه اندازه خوږه اوزړه راښکونکې وي،وګورئ چې دکاروان دپاره شعر څه شی دی اوڅنګه جوړيږي:(چې سندرې مې راشنې شي له خبرو-په سپيروشونډومې تانده خولګۍ کيږده )

نوشعرکه دښکلوبيتونو ،ترکيبونو ،کلمو ،تشبيهاتو ،استعارو ،رديفونو ،قافيو ، اهنګ او وزن نه جوړه شوې فرشته وګڼو ،نوهغه انداز چې زموز دزړه په تل کې ياغي اوسرکش پښتني ناارام روح کامران شاعراموي په دې قواعدو نه جوړيږي بلکې دکاروان دا جوړونه ډيره ساده اوپښتني ساه ده:

(شاعران يو درڼو اوښکو پر پاڼو-دزړه ويني کړو سندرې بيايې وايو ).

که شعر دخيال له ميکدې نه دهستۍ ښنونکو ميو ،څاڅکي،څاڅکي راڅڅول راڅڅول دي،هغه دهغه چا لپاره چې ديار او زمان غم پرې غلطوي.نو دکاروان شعردغزل، توري هم ددې ميو نه کم نه دي:(کاسې دغزلتوروېې دخيال له ميو ډکې-کاروانه نن دې طبعه له خماره ښوييدلې ).شاعر بايد څومره لاره وهلې وي.شاعر بايد دمعنويت کوم درشل ته ورسيږي.بايد دتفکر کوم او دروح دبغاوت کومې درجې ته ورسيږي چې شعريې دومره سندريزشي.چې شعريې دومره حماسي ليريک اوحماسي رومانتيک شي:

چېرته يې هنداريې بې تصويره يم-راشه چې بې خوبه بې تعبيره يم
راشه چې تنهاکي پښې دې ښکل کړمه-ورکه سبا ستړې له شوګيره يم
درديم په لفظونوکې مې ونغاړه-لږخومې بيان کړه بې تفسيره يم
شمس مې شه،صيقل مې کړه،شاعر مې کړه-مست مې کړه،محبوب مې شه،بې پيره يم
زړه مې ورور دللمې دګلونو دی-ورک دبارانونوله بهيره يم
خدايه که پښتو راسره ووايي-جار دې له منکر او له نکيره يم
چېرته دسندرو کاروان واړوم-زه راغلی نن له بم اوزيره يم

کله چې دغه راز شعرونه لولم په دي تصورکې کيږم چې شعربه دبربنډونازولو انديښنوپه وريښموکي دمعنويت تاوول وي.هغه هم په څه نزاکت او څه ادا.نودلته ده چې بيرته دشعر داساسي اجزاوو په فکر کي کيږم او سمدلاسه ماته:احساس،عاطفه،سندريز ريتم،کلمات اوتفکر رايادېږي. خوهغه څه چې دکاروان په شعر کې راځي ،دغه ټول بريدونه لکه دزمان نه ايليدونکي بادونه پرې کوي،کله

وړاندې،کله څنګ ته ،کله شاته درومي.په هر لوري چې درومي زما دژبې شعر پرې رنګینیږي.نو له دې کبله دي چې دکاروان شعر ته نه یوازې ښکلا پیژندونکي،بلکې شاهانو نه وروسته ،دغرونو تور دیوان ،دده دشعر ښکلا ته سلامي کیږي:

تور دیوان یې سلامي کړل،دښکلا ووښاپیروته

غزلتوري دکاروان دي،که غمي دسلیمان دي

رستیني شعرتل په خپل شعر کې خپله راڅرګندیږي.دهغه په هر تخلیق کې دی دخپل ټول معنوي پیټي سره روان وي.په تیره هغه شاعران چې شاعري دهغو له پاره په یوه مینه بدلیږي.شعر دکاروان،هستي اوداندیښنو زړي جوړوي.دی کیداي شي په پښتو ژبه کې لومړنی شاعر واوسي چې دومره زیات دشعر،شاعري ،شاعر،غزل،غزلتوري،غزلپانه،غزلیز،سندرې،سندریز،سندرماراونغمې کلمې،په بیلابیل هنري انداز سره چې دده دشاعرانه احساس څرګندونه کوي،په شاعرانه سندریز ډول استعمال کړې دي.دمثال په توګه که دده دشعر موضوعات دڅنار خبرې کوي په کتاب کې راوسپړو نومړې په دې کتاب کې دشعر ،شاعري اوغزل،غزلیز،غزلتوري،غزلپانه ،سندرې،سندریز،سندرماراو نغمې کلمې چې په یوډول یوډول دده دتخلیقي شاعرانه احساس بیان دی له څلورسوونه زیات ځل استعمال کړې دي چې له څلور سوه نه زیات رنګین او نه تکراریدونکي تصویرونه یې تري جوړ کړي دي چې دشعر اوغزل په باب دده دپوره نظر څرګندونه کوي.کله چې څوک دزړه په سترګو اوشاعرانه مینې سره دده شعرونه ولولي دې نتیجې ته رسیږي چې دی په خپل شعر کې حتې یوه کلمه هم په تصادفي ډول نه انتخابوي او هره کلمه دزړه په درد مرولي او دیوه ستر فنکار په توګه یې دکوم محبوب غاړې ته امیل کوي.دې مخکې له هغه چې شعر لیکي دخپلې شاعرۍ له پاره په خپل هنري توان سره مناسبه ژبه جوړوي.دی په ډېر تدبیر سره غواړي لومړی جوته شوې ژبه سپیڅلې اولمانځې کړي او بیا خپل غزل ترې جوړ کړي:

ستا افغان ښایست به دټپو په ژبه ستایم

جوړه پلاز مینه مې دزړه پر کندهار کړه

خلکو په ښکنځلو باندې ټول توري جوته کړل

لږخو یې کاروانه په غزل کې سندرمار کړه

زه نه پوهیږم چې دسندرې کلمه له کومه وخته په پښتو ژبه کې دانساني روح

دانځور انځورونه باسي خودومره پوهيږم چې تر کاروان نه مخکې چا زما په ژبه کې د سندرې کلمه دومره نازولې او سندريزه کړې نه وه.دکاروان روح دپښتني ماحول دوهم سندريز طبيعت دی.دی دکلمو او تورو سندريز اواز،هغه اواز چې دکلموپه زړه او روح کې تيريږي په نه بيانيدونکي ډول سره اوري.دی دغه اواز دخپل روان دنه ارامه کيدونکي اواز له اوازه سره هم اوازه کوي.هغه دپښتو ژبې سندريز توان داسې احساسوي چې کولای شو ووايو چې تر ده مخکې به کم چا احساس کړی وي.دېی دخپلې ژبې په ټوله پانگه،دهغې په سندريز،انځوريزاوپيچلې ښکلايز قدرت ډيرښه پوهيږي.خو دکاروان قدرت په دې کې دی چې دغه توان اوقدرت په ډير ساده ډول د پيچلتيا نه پرته په بې ساري هنري ډول بيانوي.دی چوپو کلماتوته روح ببښي.دی چوپو اوخاموشو کلموته ښکلايزه داسې ساه ببښي،په داسې ساده ډول له هغه نه نه تکراريدونکي انځورونه جوړوي چې تر هغه نه، نوره سادگي امکان نه لري:

چوپو کلموته چې موسکی شانې په مينه شوې
وې گونگې بلبلې سندرمارې دې ترې جوړې کړې
او په دې ډول توري نه يوازې په غږيدا بلکې په نڅا راځي.

زه دکاروان دژونداودهغه دشعر دلومړيو تجربو او هغه ماحول سره چې ده په کې هنري بيان پيل کړی پوره معلومات نه لرم.زه دهغه انگار په باب معلومات نه لرم چې ده دخپل شعردنغري اور پرې بل کړی دی ،خو هغه څه چې اوس لولم.هر شعر،هرغزل،هراواز اوهره قصيده ما لوستلو او زما قلم ليکلوته هڅوي.کيدای شي په رښتيا په دې غرونوکې دپيرو،پيرو نه کوم ويده کړل شوی سندرمارده سره ياري کوي.کيدای شي په رښتيا دده دروح گړنگ له نا بيان شويو سندرو اونغمونه ډک وي اوغيبي سندرمارپه کرار کرارهغه ورته دشعر په توگه بيا نوي:

روح مې لوی گړنگ دی،دنغمو له ازانگو نه ډک
ښايي کوم غيبي لوی سندرمار ته مخامخ يمه

مگر دی ديوه مومن اورښتيني معتقد په توگه بيرته خپل خالق ته ورگرځي،خو په دې گرځيداکې خپل پښتني ماحول نه هيروي:

خدای مې ناست په زړه کې دی،باران پرگلو ځي راځي
ټول ټپه ټپه يم،يکه زار ته مخامخ يمه

خو په همدې غزل کې دی خپل ټول قدرت ته حيرانيږي اودا حيراني تر دې رسيږي

چې حتي نه پوهيږي چې دده سندربول او دده د شعر سندريز توان له څه شي دی:

وو ايه كاروانه مؤكل د كوم يو راگ يمه ؟
تار مې له رباب سره، ستار ته مخامخ يمه

كه دا خبره و منو چې هرشعر دهغه دويونكي شاعر د شخصيت تجلا دی.هر شاعر په خپل شعر كي خپله هستي تجربه كوي.البته زموږ اكثره شاعران هغه د الهي له عظمت نه پيل كوي.بيا ځان ته راځي.هغه نه وروسته ماحول ،انسان ،بيا دهستی بې پايه تجربې ته ورتيريږي.هغه په شوق،تلوسې،فصاحت سره په خپله ديوي رڼي چينې په شان راخوټيږي:

چې سندرې مې راشنې شي له خبرو
پرسپيرو شونډو مې تانده خولگۍ كيږده

*دشعركاروان*

ته دښكلا دغرپر سرولاړه،
لكه مغروره او سركشه ونه،
په ځانگو،ځانگوكې دې ناست دي دسندرومرغان.
ستادسندرومرغان،
كه زمونږكلی ته په سيل راشي،
زمونږدغرونو دځنگلنو ځيږی غوځې اونښترشهيدان،
زموږدكلی له چنارچناره،
دشهيدانو تابوتونه جوړدي،
زماپه لپه كې دې ځاله وكړي،
ستادسندرومرغان.
...خوكه د ونې ددووځانگوپه ځېر
زمالاسونه په تبرونو چاغوځ كړي نه وو !

***

كاروان صاحب ته !
گران نااشنا ،اشنا ته سلامونه !

لطيف بهاند

هیله لرم، چې دژوند هره شېبه دې دخپل شعر په شان دهستۍ له مستو څپونه ډکه وي.

زه کاروان صاحب له نېژدې نه پېژنم، ماکاروان صاحب لیدلی نه دی.ماحتی ترننه پورې(د۱۹۹۲کال دا پریل لسمه ورځ )اوربدلی هم نه دی.د۱۹۹۳میلادي کال دجولای لسمه ورځ وه چې زموږګران دوست،دانشمند وروربناغلی زرین انځورماسکوته راورسېد اوڅوورځې وروسته یې ماته دکاروان دشاعرۍ په باب څه وویل او په یوه ماښام کې یې دهغه(له ماښامه ترماښامه)دشعرونو مجموعه دلوستلوله پاره راکړه.انځورصاحب دکاروان صاحب په باب ډ ېرښه نیت لاره او دهغه دشاعرۍ په باب یې خوږې خبرې کولې.ما کتاب واخیست،په مینه مې ولوست،که رښتیا ووایم خوندیې رانه کړاو علت یې هم همدا وچې کېدای شي دده دکتاب سره یو ځای ما دشپون صاحب یوکتاب هم ترلاسه کړ،کېدای شي دشپون صاحب ددغه کتاب تراغېزې لاندې،یا له کاروان سره دنه پېژندنې ترتاثیر لاندې زه دده شعر جذب نه کړم.یاهم کېدای شی دکاروان صاحب هغه مجموعه به همداسې وه.اوس مې چې بیا هغه مجموعه را واخیسته داسې ښکاري چې په رښتیا هم په هغې کې ځینې شعرونه ماته داسې ښکاري لکه چې بل چا لیکلي وي.البته هغو ته به وروسته اشاره وشی.زه فکر کوم چې په هغه کتاب کې چې زه به اوس دهغه په څه ښکلو او نایابو ترکیبونوخپله نیمګړې ژبه بشپړه کړم.کاروان لا دلته،هڅو او ورکو چارو پسې سرګردانه و،اویا کېدای شی هغه غوښتل چې ډېر شعرونه چاپ کړي.که خبره را لنډه کړم بالاخره مې یو ورځ دچا په لاس کې دخوشحال دفرهنګی ټولنې نشراتي ارګان ((شمشاد مجله)) ولیدله(دربیم کال لومړۍ ګڼه،۹۳کال اپریل -سپتمبر)په هغې مجله کې دکاروان صاحب ـدتبسم لاس-په نامه یو غزل چاپ شوی و ،ما داغزل په وار وار سره ولوست،بیامې ولوست او ځان سره مې وویل:زما همژبو مبارک مو شه.هېڅ مې هغه وخت او شېبه نه هېرېږی چې ومې لوستل:

سور دروح په وینو دکاروان غزل

ته وا دکـــابـل دپېغلې مړی دی

دادی چې اوس مې بیا یو ځل له ماښامه ترماښامه-مجموعه ولوستله په رښتیا چې هلته ځینې داسې شعرونه یا نظمونه شته چې په هغې کې،هغه سترې ځانګړتیاوې چې دکاروان په ننني شعر کې لیدل کېږي او هغه رنګینه وي،هلته نشته،خوبیا هم کاروان صاحب:

لطیف بهاند

تاسو چې کولای شی په زړونو کې دتلوسې تنده وکړئ، تاسو چې کولای شی په هغو کې دخمار گلونه راشنه کړئ. دا چې ستاسو تندی کاڼي ماتوي او بیا موږ له هغه نه ټول زگېروي او فریادونه کوو، خو تاسو له هغونه کورگي جوړوئ. تاسو چې له پرهرونه، پسرلي جوړوئ او د ژوند شاړې دنغمو په ابشار خړوبوئ او په هغه بیا دروح دستمال مینځئ او کله کله دیاغیتوب هغه شپه چې زه یې یادوم:

وړو خدایانو سره وې، راځئ چې ښه یې مات کړو
یاغی تندی دی، دا بـــــه چاته په سجود راځي؟
موږ د سپرلو په غېږ کې شنه خوبونه کړي نه دي
لا په گلپاڼو کې سکروټـــــې دنمـــرود راځي

گرانه کاروانه زه داسې انگېرم که تاسې په خپله شاعرۍ کې دښاغلي لیونتوب دشعر ډول، دپاڅېدو، دانسان دهستۍ دمعنوي جوړښت بیان ته وقف کړئ، دا به تاسو دیوه ځانگړي ډول خاوند وساتي، تاسو به په دې شعر کې بل ډول راڅرگند ېږئ، تاسې حتی ترکیبونه او عبارات، نه دترکیب او عبارت په توگه بلکې دیوې نوې نغمې دانځور په توگه انځوروئ. زه ستاسو او غني خان غني دغزل په شکل او جوړښت او په هغه کې نا پېښتني کلماتو په خورا زیاتوالي نه غږېږم. زه دهغه په معنوي اړخ او په هغه کې ستاسو دروح دڅرگندولو په ډول غږېږم. هغه خورا لوړ گڼم. یا هم کله ستاسو دشعر په ځینو بیتونوکې چې په ډېر ښکلایز ډول هر څه په کې راڅرگند ېږي، نه یوازې راڅرگند ېږي، راخوټېږي او په دې کې عاطفه په نه تکراریدونکي ډول رانغاړل کېږي. خو سره له هغه هم په ځینو ځایو کې ځینې ټکي بې ځایه ښکاري یا هم دغزل په نشه کې بېځایه لیکل شوي دي او یا بل ډول تصویر شوي چې زه یې له پوهېدو نه عاجزیم.

دغه راز هر هغه شعر چې په هغه کې دادبي صنایعو له تشبیه نه نیولې تر استعارې او یا مبالغې پورې کوم فن نه وي، هغه به ټول لوڅ خبرو ته ورته وي. دمثال په توگه موږ کولی شو ((له ماښامه تر ماښامه)) په مجموعې کې داسې بیلگې پیدا کړو:

دمودو تږی درته راغلم تا سخا ونه کړه
ساقی مستانه هېڅ پېرزو دې په گدا ونه کړه
ستا په درشل کې مې تندی ډېرو سجدو که ستړی
ما ستا دحسن پرستش کړ تا پروا ونه کړه

دزړه ساحل یوازنی، یوازنی دپام وړ ترکیب دی، چې په دې غزل کې کولای شي

ځان ته پام ور واړوی او له بلې خوا دا رنګه خبرې لکه د(وچ ککړ ساحل)ترکیب چې ډیر شاعرانه نه دی هم استعمال شوي دي. او یا هم دا بله غزله چې نویوالی لرې په کې تت شوی دی، په دې مطلع پیل کېږي:

ماوې چې مړو ته به زه وایمه ژوندی، سندرې
خووخت مې نه پرېږدی په زړه د نېکمرغې سندرې

اویا هم دغه دیوه ښه میتهنګ وینا ته ورته څو جملې:

"زمانې له خوبه پاڅه ،دوجدان غږونه واوره
دغه کوم عدل انصاف دی، چې حقوق دانسان وسول "

دهر شاعر یوه ډېره غوره دنده داده چې په خپل شعرکې دشعر ښکلا یز اړخ ته هم پام وساتي،زیاروباسي چې کلمات او ترکیبونه سندریز وي.

دوهم دا چې که دخپلې ژبې توري،کلمې او ترکیبونه پیدا کولی شي،چې باید پیدا یې کړي،باید دنورو ژبو له تورو ،کلمو اوترکیبونونه ځان وژغوري.اوکه په تېره بیا کلمات بالکل نوي وي،هغه خو به بله ښکلا او خوند ولري.دمثال په توګه(دجنون پړاو ) په شعرکې،که تاسودتخم په ځای دزړي ،کلمه راوړې وای،ستاسودا شعر به داسې ښکلی شوی ؤ او دښکلا اغیزې به یې تل زیاتې وای:

مینې زما زړه کې دشعرونو زړي وکره
دې سوي چمن کې دګلونوزړي وکره
پرېږده چې دسترګو په پانوس مې ډیوې ولګي
حسنه په موسکا کې داورونو زړي وکره
لږمې دا پرهرځیګر دمینې په اوروتبه
راشه لاله زار کې دداغونو زړي وکره
سترې به مې نشي فرهادی تکل په مینه کې
ماته په قدم قدم دغرونو زړي وکره

زموږ دزمانې شاعره! دپښتني شعرکاروانه! راځه چې دزړه له کومې درته ووایم:تاسې یو شاعریاست.دیوه شاعر په توګه ستاسو دتخیل بې سارې راخوټېدونکې چینه دنور او رڼا نه سرچینه اخلي.ستاسو په شعر کې دیوه شاعر خبره،بادونه دا اذانونو په ځای نارې وهي.دا اذانونه خلک نه عقیدې ته،بلکې مینې ته ،ګډې بشري وروګلوۍ ته وربولي.اوریدونکي لمانځنې ته وربولي.ستاسو شعر،ستاسو دشعر

اواز،زما په وران شوي وطن کې،هغې سهارنۍ ورمې ته ورته دی چې سوځېدلي باغ کې لګي.یا هغه شمع چې ادبروکې سوځي.یاهم شاید ستاسو شعردنبکمرغۍ دشنو باغونوهغه راغوړیدونکې غوټۍ وي،چې ګل دښمنه تل ورته لور په لاس ولاړ دي.زه چې کله ستاسو شعرونه لولم،البته هغه شعرونه چې زما خوښېږي،زه کولی شم ووایم،ستاسو ښه شعرونه یو ژوند ته ورته دي.ستاسو شعرونه ازادۍ ته ورته دي.شاید هم کومې نغمې ته،کومې موسقۍ ته،کومې سپېدې ته .ستاسو شعرونه دغمونو په ډاګونوکې انسان دغم څپو ته، نه پرېږدي.ستاسو شعرونه سره له هغه چې دعرفان تر بنۍ پورې لوستونکې سره نه ځي،(پرته له شاعرې اروا )نه،خو بیایې هم ښه والی دادي چې له وچ مذهبي او ایدیالوژي شعارونه ،هغه شان چې ښایي مخ اړوي،غاړه غړوي،خو نه پوهېږم ولې دلذت ځراغونه نه شي لګولي.تر اوسه پورې ستاسو شعر له قفس نه رېا راخوشې کوي،خو قفس ماتولی نه شي.زه کله کله وینم چې ستاسو شعر در په دره ګرځي او.ښکلاوې،نه غلط شوم ښکلاوې او دیدنونه راټولوي،مګر نه پوهېږم هغه څه کوي؟

ګرانه شاعره !

ستاسو په شعرکې د رېا کاروان بار دی او دسیاست دکاروان پرخلاف چې تل خالي باروي،ستا د رېا نه د راپیدا شوې رېا دهندارو کاروان،درونډ ، پرتمین بار دی او ښه بار دی.خو زه داسې فکر کوم که ددنیا دکاروان دملي دود ودستور اوعنعنو ،دملت دهستۍ او روح په درانه او درونډ بار ونه ګاڼل شي،هغه به دکارل مارکس په قول د(معنویت درونډ غر) جوړ نه شي کړای.داسې غر چې په هغه کې دمعنویت هر ډول مرغلرې وموندل شي. دا به څګه شي؟

پوهېږې کاروان صاحب ! ما په هغو شعرونو کې چې تاسو ،داود جان ته لوستلي وو ،ډېرڅه ولیدل،ما هلته ډېرڅه واورېدل. ما ولیدل چې هلته لمر ښکلا ته غېږ پرانستې ده،خودګناه لذت،هغه ډوبېدوته نه راغواړي.ماتنکۍ لمر ولید چې ستا سو له شعره دسهار دپېغلې ناویتوب پسې ډولۍ جوړوي،.ستاسو په شعرکې زه هر څه وینم.خو هغه ورځ ته یې سترګه په لاره یم،چې ستا په شعر کې وګورم،چې دزاهد له ریا نه هغه پرده پورته وي،چې هرڅه په خرقه پټوي،چې زاهد له ځانه غچ واخلی،چې زاهد اوقاضي دواړه له عاصی نه تښتي او هغه ته له شرمه کتلی نه شي.زه هغې ورځې ته سترګې په لاره یم چې ستا سو په شعر کې دختیځ ګونګه مینه ژبه پرانیزی.پورته وګوری او پر تقوا تالان ګډکړي او لکه دپریوتې ګل په حیا حیا کې،له ټول شرم سره سره دټولو

ترمخې له ګله نیولې ترچناره پورې غېږ تاو کړي، چې په تقوا تالان او لذت خپور شي.
خو په هر حال ستاسو شعر د هجرت هغه خیال ته ورته دی چې مهاجر ځان بې خیاله د خپلې کوڅې ګرځنی کې ګوري، هغه ځان همزولو سره ويني.
زه چې هر کله ستاسو شعر لولم هغه زما د کلي ګرځني او تنګې کوڅې رایادوي. ستا شعر ما ته هغه ورکې رایاد وي، چې بل ډول نه رایادېږي. ستا شعر زموږ د کلي د نريو شنو بهېدونکو اوبو، د بیالو د غاړو د بېلني بوی خپروي. ستاسو شعر زموږ د کلي د لمريزې خوا، د واورو لاندې، د لومړنيو پسرلنيو ګلونو ته ورته دی. هغه ته ډېر نېږدې دی. ستاسو شعر ما ته زموږ د کلیو د سپېڅلوالي هغه شېبې رایادوي چې هغه، واک ته درسېدو وژنو او دو کو له هېڅ سره برابرې کړې. ستاسو په شعر کې ما ته، زموږ د کلي، په ژېړو پاڼو پټې ورکې لارې رایادېږي. ستاسو په شعر کې ما ته، د انساني مينې هغه نه بیانېدونکي خواوې راڅرګندېږي چې نورېې نه شي، انځورولی او که يې انځور هم کړي داسې رنګين به نه وي. خو يوه خبره باید هرومرو وکړم او هغه دا چې، هغه څه چې ما دلته وليکل هغه ما ټول ستاسو په مجموعو کې نه دي لوستلي، ما تاسو نه، نه دي اوريدلي، یا خو کېدای شي ما په خوب کې ليدلي وي، یا ممکن هيڅ داسې نه وي. مګر ما ځکه وليکل چې ته يې د ليکلو او د شعر مينه وال و ته د ډالۍ کولو توان لري. زه باور لرم چې ستاسو د شعر نه ارامه کېدونکې او سرکشه چينه د هغو د هستولو توان لري، خو يو څه ورته په کار دي، د ځينو بوټانو له لمانځنې نه ځان ژغورل.
کاروان صاحب!
يوه شېبه د کلي شپه در یاده کړه. ستاسو په شعر کې د دې شپې د تیارو، نه تصويرېدونکی هيبت، څنګه موږ ته تصویروي؟
د شعر کاروانه!
د چا شا ته ښکلي کتل در یاد کړه، که زه شاعر وای ما به د انسان په سترګو کې د ښکلا د اظهار، د انسان په سترګو کې د ښکلا د تصوير، د انسان په کتوکې د کرکې نښې، د انسان په سترګو کې د بلنې، د انسان په سترګو کې د یوازيتوب او بالاخره د انسان په سترګو کې د مينې او د هغې د ټولو رازونو بیان، بیان کړی وای.
مګر زموږ د زمانې ستونزه، ستره ستونزه چې د انسان په روحي او معنوي ژوند کې، د هغه د دروني احساس او ستومانۍ سبب کېږي، هغه زموږ په دې زمانه کې نه یوازې سیاسي اقتصادي بحرانو نه، بلکې د دې زمانې ورځ تر ورځ زیاتېدونکي معنوي

،کلتوري بحرانونه هم دي.

پوهېږې کاروان شاعره !

دا ټول ځکه چې نننی انسان په معنویت اتکا نه کوي، هغه دتخنیک اونوي تمدن په سترقدرت او دهغو په خلاقیت ایمان راوړی دی.دمثال په توګه، پر کمپیوتر.پر هغه کمپیوتر، چې ستاسو مخې ته ولاړدی،نورنو انسان له قوې حافظې،دښکلي لیک دهنري کرښو له انځورونو او ان ژورې مطالعې دتل لپاره پردی کوي.په دې نوي تخنیکي زمانه کې بشري یون له معنوي شتوالي نه تخنیکي پرمختګ ته وراړوي او همدا علت دی چې په یوروپ کې خلک دادب او دشعرپلویان ،تږي ګرځي.

زه دتمدن دښمن نه یم،خو زموږ دخلکو ژوند باید نه په زور نه په ګوابښ،نه دتخنیک او نه دعقیدې په کوډو له عنعنو، دودونو او دستورونو،نه و،نه ایستل شي.که امکان ولري زموږ خلک هم لکه دجاپان دخلکو په شان دمعنوي او عنعنوي ژوند سره مل دتخنیک پړاو ته ورسېږي.باید دود ،دستور ،دنیکونوژوند او نغري ته درناوی وشي.باید دټولو هغو پانګو درناوی وشي چې دټول بشري ژوند نه موږ ته را پاتې دي.موږګورو چې په جاپان کې امپراتوري سلطنتي کورنۍ، دسپېڅلوالي او تقدس پړاو ته رسېدلې ده.داتقدس په دوی کې دانساني خواخوږۍ،لمانځنې او په هغوکې دیوې معنوي هڅې معبد جوړوي.داسې معبد چې دانسان په وړاندې دبې لارۍ او تېروتنې نه دراګرځېدو خنډونه جوړوي او دملت دټینګښت سبب کېږي.

تاسو باید په ټولو هغوځایونه کې چې تېرېږئ عاطفیز او سندریز ترنم خپور کړئ.ځان نه دغزلیزو اداګانو شېبې پرېږدئ.ستاسو شعر باید د ادا ،خواخوږي اونګهت وږمه واوسي.تاسوباید په شعرکې دتربګنۍ په تېره بیا دخپل اولس او هم اندو سره له سیالۍ او تربګنۍ نه ځان وساتي.دغه راز باید ځان له ټولو ګوندي،مذهبي او محلي تربګنیو نه لاس په سر کړي.تاسې باید دانساني ښکلا امیلونه جوړ کړئ او ښه ځانګړتیا به لا دا وي چې هغو کسانو ته لا زیات درناوی ولرئ چې ستاسو سره سالم مخالفت لري،ځکه هغوی په تاسو کې دزیات تفکر تلوسه راوېښوي.هغوی په تاسو کې دخوځېدا هڅې رالمسوي.موږ باید د ټولنیزبحران ستونزه ، دستر فیلسوف ((نیچې)) دعقایدو له مخې، دانساني بحران دستونزې،اوارۍ ته وروا ړوو.

که تاسو وکولی شئ په خپل تخلیق کې دډلو له بحران نه دبشر او انسان دروني بحران ته،ور واړوي،تاسو به دځان دنا امیدۍ،دخپل ملت دنا امیدۍ او کېدای شي

دبشر دنا امیدۍ د بحران اوارۍ ته هرو مرو څه گټه ورسوئ.

ددې خبرو حق ځان ته ځکه زه ورکوم چې په دې ډاډمن شوی یم چې،تاسو ته طبیعت او خپل ژور احساس او استعداد ،هغه څه په خټه کې درنغښتي دي،چې کولی شم وو ایم چې زموږ په هممهالو کې یې، زموږ په نسل کې یې کمو کسانو ته ورنغښتي دي. (البته دتخلیق ژور احساس) تاسو کېدای شي دخپلې سبمې لومړی څوک واوسی چې په هغه کې دژوند دانځورولو هغه قوت نغښتی دی چې نوریې حتی دتصور امکان هم نه لري.

گرانه کاروان صاحب !

که شاعر په خپل شعرکې دیوه متفکر په توگه راڅرگند شي،لکه هغه شان چې غني خان غني یا باري جهاني را څرگند شوی دی.دا به دکمال نښه وي،ځکه دانساني خیالونو ددوه دوه تنو انځورگرانو په اثارو کې لوستونکي،ښه لوستونکي،دقیق لوستونکي کولای شي دخپل تصور اسطورې،خپلې یادونې یا غوښتنې او یا خیالونه ولټوي او پیدا یې کړي.

سره له هغه چې ځینې پوهان په دې باور دي چې داسطوري اغېزه زیاتره وخت تر اوسنیو عقایدو زیاته غوره او اغېزمنه وي او ژوند لا هیله مند او ابدي کوي.دانسان هستي پیاوړي کوي.دهغې عمر اوږدوي او هغه دورځ چارۍ له حالت نه راباسي.

او تاسو کاروان صاحب !

تاسو باید دخپلو سرگردانه خلکو او په ځان ظالم ملت دهغو اسطورو انځور گر شئ،چې کله کله دوی په خپله هم هغه نه پېژني.تاسو باید دوی ته هغه څه را وسپړئ چې،په راسپړېدو سره اسطوره کېږي.تاسو دخپلو خلکو هغه نا،جوړشوي بت راجوړکړئ چې تراوسه لا راجوړ شوی نه دی.که شاعر وکولای شي دهغه ژور انساني احساس تصویر وباسي،چې دده دملت دژوند کومه شېبه انځوروي ښه به وی.داسې شېبه چې دټولو احساس لمسوي، داسې یوه شېبه چې کوم مئین یې کله کله په یو وار کتو او یا غلچک کې وینې او دده په انځورکې ابدي کېږي. یا دهغه درد او احساس انځورول ،چې کوم اغیار یې ژبه،یا مینه درنه اخلي.یا دهغه درد احساس، چې په خپل وطن کې په مورنۍ ژبې غږېدل گناه او تعصب وبلل شي.

گرانه کاروانه !

دا به یوه بې سارې چاره وي،چې شاعروکولای شی داسې ژور دردونه،په کوم

شعر ،په کوم بیت، په کومه جمله، په کوم ترکیب او یاکوم توری کې انځورکړي.او له نېکه مرغه داکار تاسو په بې ساري توګه کولای شي.ما ستاسو دبې سارې ښېلګه په وار،وارسره لوستلې اولا لولم يې:

ته دښکلا دغره پرسرولاړه،

لکه مغروره اوسرکشه ونه،
په څانګو ،څانګوکې دې ناست دي دسندرومرغان.

ستادسندرومرغان،
که زمونږکلي ته په سېل راشي،
زمونږ دغرونو دځنګلونو څېرې غوځې اونښتر شهیدان،
زمونږ دکلې له چنارچناره،
دشهیدانو تابوتونه جوړدي،
زماپه لپه کې دې ځاله وکړي،
ستادسندرومرغان.
...خوکه د ونې ددوو څانګوپه څېر
زمالاسونه په تبرونو چاغوڅ کړي نه وو !
وینې کاروان صاحب !

ستاسو دسندرو مرغان دیوه ملت،دیوه ګونګ کړل شوي ملت دسندرو مرغان دي.دهغه ملت مرغان،چې نه یوازې ملت ته بلکې دهغو مرغانو ته هم دسېل ځای پاتې نه دی.تاسې په خپل تخلیقي توان سره ددغه شېبو په انځورولو سره کېدای شي دخپل ملت د تکرارېدونکو تراژیدیو لوی انځورګرشئ.داهغه تراژیدي ده،چې دهغه پېژندنه،تصویر اودرک مونږ ته دلمسون اوهڅې ستر قوت رابښي.دغه هغه چاره ده چې په انسان کې داسې يو عظیم الشان توان رازېږوي چې هغه له لندپارې،ناپېژندنې،لندعمرو او ورځچارو عقایدو نه ژغوري.کله چې انسان وکولای شي له دغه شان انساني بحران نه ځان او يو څو تنه نور وژغوري ،هغه ته بیا دشخصیت خلاقیت ، معنویت ، ازادۍ او دملي ګټو مفاهیم ترهرڅه مخې ته کېږي.نوکله چې دتاسو په شان شاعرانو شعري تخلیقات لولو،ددغه شان لیکوالو سره پېژندنه

پیدا کوو ،ځان داسې احساسوو ،چې ګواکې دازادۍ،او معنوي خپلواکي، ترلاسه کوو او دوطن دهلبندونو هوا تنفس کوو.

ستا دغه شعر چې مایې دلته بېلګه راوړه زما له نظره دملت دروان تومنه ده.دملت دقوت او دملت دپیاوړتیا تومنه او بزغلی.که زموږپه اوسنۍ شاعرۍ کې یو څو تنه دغه راز دګوتو په شمار دسندرو مرغان پیدا شي ، زموږ دادب بڼه به دنوي بهیر اونوي روح خاونده شي.دادی له نېکه مرغه تاسو داډیوه بله کړه.مګر زه نه پوهېږم،په داسې حال کې چې زموږ په هېوادکې ټول دپرمختګ لېوال دي،خو دپرمختګ پلویانو ،یوه هم دملت دمعنوي روزنې،رواني پالنې او په وګړو کې دښکلا یز ذوق دپیاوړتیا هڅه نه ده کړې.او یاهم کېداي شي دمسوولیت خاوندان دفرهنګ تر دغې کچې پورې نه وو ،رسېدلي.دوي خپله مادي شوي وو.دوی له ځانه پردي شوي وو.اصلا دوی خپل ،نه وو.دوی په خپل ځان کې له ځانه پردي شوي وو او تر اوسه لا پردي دي.دغه راز له دغه نتني پیدا شوي بحران غیرمشروع پیدا شوي زوی،دغه نتنۍ واکمنه هیواد دښمنه ډله(۱۹۹۵کال)چې په وچ ژبني تعصب،تش په نوم دین(ټول اعمال یې ددین ضد دي)خو اصلا په جاسوسي ولاړه ده او داسلام او مذهب تر پردې لاندې دنورو دواکمنۍ له پاره کار کوي هم ددغه پردیتوب لړۍ اوږده وي. دوی دمذهب او عقیدې ترسخت رواني فشار لاندې،ټول ملت ولجه کړی دی او دشلمې پېړۍ دټاکل شویو بشري حقوقو پرخلاف ټول خپل تعصب او دځانګړوعقدو منلو ته اړکوي.دوی غواړي ټول ملت دځان په رنګ کړي.البته دغه ځانګړتیا په تېرو شلو کالونو کې په پردي مارکسیزم سمبال یې ډلې او نتنۍ په زور زیاتۍ سمبالې تش په نوم اسلامي ډلې له ځانه څرګنده کړې ده. دادواړه ډلې په زور کلي جوړوي.دواړه ملي ، عنعنې او دود دستور ته درناوی نه کوي.

زموز دهېواد بدمرغي په دې کې ده،چې نه یوازې دنړیوالو ګواښمنو وسلو پولیګون دی بلکې دوسلې او قدرت دخاوندانود ناوړه او موږته هرډول پردیو عقاید ومرکز هم ګرځېدلی دی.زموږ په هېواد کې نه یوازې دمارکسیزم پوځي او فسخ شوي ډول،ددې وطن دیوه نسل په پاک او سپېڅلي احساس لوبې وکړې،بلکې کلونه کلونه کیږي چې دسپېڅلیو عقایدو تر پردې لاندې دبشر تر ټولو ستر جنایتونه په دې خلکو ترسره شول او ترسره کیږي۱۹۹۵).

کاروان صاحب ښښنه غواړم ،اوس به بېرته راشو ستاسو شعرته.دکاروان شعرته،ستاسو په شعرکې ملالو سترګو ته ! هغو ملالوسترګوته چې ته یې تر بل هر چا

ښې پېژني ،ته هغه ويني. هغه به زما ددې څو ګډو ،وډو لپاره،دناښکلا لپاره ښکلا يزپاى يا په بله وينا حسن مقطع شي:

ستا کوچانۍ او ستا ملالې سترګې،

زما د روح دلالهاند لا روي،

دښايستو کو ،غم انګېزو ،خاطرو دمه ځاى،

په کې روان دى دزرينو انځورونو کاروان،

په دې کاروان کې ماښامونه بار دي، ستوري بار دي،

په کې رنګونه دګلونو بار دي.

په کې کعبه ده ،ميکده ده ،خانقا بارده.

مهاجر ژوندون،مسکو ،۱۳۷۵کال، لومړۍ ګڼه.

# چېرته د سندرو کاروان واړوم

زه چې کله بې هنداروا وبې تصويره کېږم.زه چې کله غواړم دردمې په لفظونو کې ونغاړم.زه چې کله غواړم چېرته يا چاته ځان بيان کړم. زه چې کوم وخت دبارانو نوله بهير نه ورک کيږم اوزړه نه دللمي دګلونوورور جوړوم ،نو دکاروان دغزلو تيريدونکي اونه ستړيدونکي کاروان ته غوږ غوږشم.زه چې کله کوم خم ته تکيه اويارته مخامخ شم،نو پوهيږم دچا پښتني ارواح په ما راګرځي اودلرو لرو کليوتپې مې په پستني يکه زارتر غوزو کيزي.زه چې کله اوس،اوس په تصور کې دپښتني ستومانه زړه له تل نه راجګ شوي فريادونه اورم،نو خيال کې په رښتيا سره زموږددنګو غرودځيريودنګې ونې تيريږي.نو په دې ګونګ ماحول کې يوازې دکاروان خبرې کوونکي او افسانه بيانوونکي چنار ته غوږ شم.هغه چنار چې روح يې دلوى ګړنګ په شان دنغمو له ازانګونه ډک دى.نه پوهيږم چې دنغمو له ازانګو نه ډک دى او که يا کوم غيبي سندرمار په کې غږيزي؟خو دا غيبي سندرمار په کوکو نارې وهي چې:

راشه درحمت بارانه ښار اخيستى اوردى

ژوند لکه دکلي دچنار اخيستى اوردى

راشئ زما اوښکې ورله يوسئ بلبلانو

سوځي درنه ښکلي لاله زار اخيستى اوردى

لطيف بهاند

نه يې دچالاس لکه امېل له غاړې تاوشو
غاړه کې يې خپل دغاړې هار اخيستی اوردی
وچې شونډې گرځئ بدبختانو ميخوارانو
اوښکې دانگوروسوې انار اخيستی اوردی
لرې شه لمنه به دې وسوځي طبيبه
پرې يې ږده چې څه کيږي پرها اخيستی اوردی
ماوې گلابي جامونه راکړه راته وې يې
واروکړه تلوار مه کړه ستا وار اخيستی اوردی
سوې دکاروان سندرې چا په زمزمه کړې
گوتې دمطرب وسوې شاتار اخيستی اوردی

هوکې اوردی خوپه دې نه پوهيږي چې دا اور په خپله هغه چا بل کړی دی چې ځان درحمت باران گڼي.هغه حتی په دې هم نه پوهيږي چې همدې باران حتی ژوند دکلي دهماغه يوازني چنار په شان اور وراچولی دی.نه يوازې دکلي چنار،دکلي لاله زار،دمين دغاړي هار،دکلي دانگورانارهم اوراخيستی دی.

زموږ شاعر،هغه شاعر دی چې سندرې وينځې او غزل يې غلامان دي.هغه شاعرچې خوب تښتيدلو ته دغزلو اوقصيدو کاروانونه رسوي.دفطرت مور دنغموغوټې ورته ساتي.داشاعرسره له هغه چې په مينه کې تر بل هر مين نه ډوب دی،مگرستمگر ماحول دی دې ته اړ باسي چې خپل نازک غزل ته داسې تشبيه پيدا کړي:

(دښو اوشونډو ياد هم رانه هير دی
ـــجوړ غزل مې له خنجر او له پرهر دی).

دا هغه شاعر دی چې شهيدې پيغلې يې په ماتو کودريو کې له گودرنه داوبو پرځای وينې وړي.دا هغه شاعر دی چې دکلي ماشومتوب يې شهيد شوی دی.نوله دې کبله دی چې دتفکر او احساس دپراخ اسمان په لمنه کې ددغې راخوټيدونکې چينې او غيبي سندرمار په باب به خبري،څيړنې او څه ليکل به څه اسانه کار نه وي.کلونه،کلونه کيږي چې ما دشعر په باب خپلې زده کړې اوڅيړنې پيل کړې دي .خو داسې يو تصوير ،داسې يو انځواوداسې يو تعريف چې زما تنده پرې ماته شي اوخوند راکړي نه ليکی شم اونه ويلی شم.ډير وخت مې هغه په سندريزو توروکې داحساس، عاطفي اوتفکرنه

تکراریدونکې جره غوټه ده.داغوټه چې څومره جره وي په هماغه اندازه خوږه اوزړه راښکونکې وي،وګورئ چې کاروان دپاره شعر څه شی دی اوڅنګه جوړیږي:(چې سندرې مې راشنې شي له خبرو-په سپیروشونډومې تانده خولګۍ کیږده )نوشعرکې دښکلوبیتونو،ترکیبونو،کلمو،تشبیهاتو،استعارو،ردیفونو،قافیو ،اهنګ او وزن نه جوړه شوې فرشته وګڼو،نوهغه انداز چې زموږ دزړه په تل کې یاغي اوسرکش پښتني ناارام روح کامران شاعر پرې راموي په دې قواعدو نه جوړیږي بلکې دکاروان دا جوړونه ډیره ساده اوپښتني ساه ده:

(شاعران یو در\ڼو اوښکو پر پاڼو-دزړه وینې کړو سندرې بیایې وایو ).

که شعر دخیال له میکدې نه دهستي ښښونکو میو،څاڅکي،څاڅکي راڅڅول راڅڅول دي،هغه دهغه چا لپاره چې دیار او زمان غم پرې غلطوي.نو دکاروان شعردغزل، توري هم ددې میو نه کم نه دي:(کاسي دغزلتورویې دخیال له میو ډکې-کاروانه نن دې طبعه له خماره ښوییدلې ).شاعر باید څومره لاره وهلې وي.شاعر بایددمعنویت کوم درشل ته ورسیږي.بایددتفکر کوم او دروح دبغاوت کومې درجې ته ورسیږي چې شعریې دومره سندریزشي.چې شعریې دومره حماسي لیریک اوحماسي رومانتیک شي:

چېرته یې هنداري بې تصویره یم-راشه چې بې خوبه بې تعبیره یم
راشه چې تنهاکې پښې دې ښکل کړمه-ورکه سبا ستړی له شوګیره یم
دردیم په لفظونوکې مې ونغاړه-لږخومې بیان کړه بې تفسیره یم
شمس مې شه،صیقل مې کړه،شاعر مې کړه-مست مې کړه،محبوب مې شه،بې پیره یم
زړه مې وروردللمې دګلونودی-ورک دبارانونوله بهیره یم
خدایه که پښتو راسره ووایي-جاردې له منکر او له نکیره یم
چېرته دسندرو کاروان واړوم-زه راغلی نن له بم اوزیره یم

کله چې دغه راز شعرونه لولم په دې تصورکې کیږم چې شعربه دبربنډونازولو اندیښنوپه وریښموکې دمعنویت مروړل وي.هغه هم په څه نزاکت او څه ادا.نودلته ده چې بیرته دشعر داساسي اجزاوو په فکر کې کیږم او سمدلاسه ماته:احساس،عاطفه،سندریز ریتم،کلمات اوتفکر رایادیږي. خوهغه څه چې دکاروان

په شعر کې راځي ،دغه ټول بریدونه لکه دزمان نه ایلیدونکي بادونه پرې کوي.کله وړاندې،کله څنګ ته ،کله شاته درومي.په هر لوري چې درومي زما دژبې شعر پرې رنګینیږي.نو له دې کبله دي چې دکاروان شعر ته نه یوازې ښکلا پیژندونکي،بلکې شاهانو نه وروسته ،دغرونو تور دیوان ،دده دشعر ښکلا ته سلامي کیږي:

تور دیوان یې سلامي کړل،دښکلا ووښا پیروته

غزلتوري دکاروان دي،که غمي دسلیمان دي

ښتیني شعرتل په خپل شعر کي خپله راڅګندیږي.دهغه په هر تخلیق کې دی دخپل ټول معنوي پیټي سره روان وي.په تیر هغه شاعران چې شاعري دهغو له پاره په یوه مینه بدلیږي.شعر دکاروان،هستي اوداندیښنو زړي جوړوي.دی کیدای شي په پښتو ژبه کې لومړنی شاعر واوسي چې دومره زیات دشعر،شاعری،شاعر،غزل،غزلتوري،غزلپاڼه،غزلیز،سندرې،سندیریز،سندرماراو نغمې کلمې،په بیلا بیل هنري انداز سره چې دده دشاعرانه احساس څرګندونه کوي،په شاعرانه سندریز ډول استعمال کړې دي.دمثال په توګه که دده دشعر موضوعات دچنار خبرې کوي په کتاب کې راوسپړو نومړې په دې کتاب کې دشعر ،شاعری اوغزل،غزلیز،غزلتوري،غزلپاڼه ،سندرې،سندریز،سندرماراو نغمې کلمې چې په یوډول نه یوډول دده دتخلیقي شاعرانه احساس بیان دی له څلورسوونه زیات ځله استعمال کړې دي چې له څلور سوه نه زیات رنګین او نه تکراریدونکي تصویرونه یې ترې جوړ کړي دي چې دشعر اوغزل په باب دده دپوره نظر څرګندونه کوي.کله چې سړی دزړه په سترګو اوشاعرانه مینې سره دده شعرونولولي دې نتیجې ته رسیږي چې دی په خپل شعر کې حتی یوه کلمه هم په تصادفي ډول نه انتخابوي او هره کلمه دزړه په درد مرولي او دیوه ستر فنکار په توګه یې دکوم محبوب غاړې ته امیل کوي.دی مخکې له هغه چې شعر لیکي دخپلې شاعری له پاره په خپل هنري توان سره مناسبه ژبه جوړوي.دی په ډیر تدبیر سره غواړي لومړی جوته شوې ژبه سپیڅلې اولمانځې کړي او بیا خپل غزل ترې جوړ کړي:

ستا افغان ښایست به دټپو په ژبه ستایم

جوړه پلازمېنه مې دزړه پر کندهار کړه

خلکو په ښکنځلو باندې ټول توري جوته کړل

لېږخو یې کاروانه په غزل کې سندرمار کړه

لطیف بهاند

زه نه پوهیږم چې د سندرې کلمه له کومه وخته په پښتو ژبه کې د انساني روح دانځور انځورونه باسي خودومره پوهیږم چې تر کاروان نه مخکې چا زما په ژبه کې د سندرې کلمه دومره نازولې اوسندریزه کړې نه وه.دکاروان روح د پښتني ماحول دوهم سندریز طبیعت دی.دی دکلمو او تورو سندریز اواز ،هغه اوازچې دکلمو په زړه او روح کې تیریږي په نه بیانیدونکي ډول سره اوري.دی دغه اواز دخپل روان دنه ارامه کیدونکي اواز له اوازه سره هم اوازه کوي.هغه دپښتو ژبې سندریز توان داسې احساسوي چې کولای شو ووایو چې تر ده مخکې به کم چا احساس کړي وي.دی دخپلې ژبې په ټوله پانګه،دهغې په سندریز،انځوریزاوپیچلي ښکلایز قدرت ډیرښه پوهیږي.خو دکاروان قدرت په دې کې دی چې دغه توان اوقدرت په ډیر ساده ډول د پیچلتیا نه پرته په بې ساري هنري ډول بیانوي.دی چوپو کلماتوته روح ښبې.دی چوپو اوخاموشو کلموته ښکلایزه داسې سابښي،په داسې ساده ډول له هغه نه نه تکراریدونکي انځورونه جوړوي چې تر هغه نه، نوره سادګي امکان نه لري:

چوپو کلموته چې موسکی شانې په مینه شوې
وې ګونګې بلبلې سندرمارې دې ترې جوړې کړې
او په دې ډول توري نه یوازې په غږیدا بلکې په نڅا راځي.

زه دکاروان دژونداودهغه دشعر دلومړیو تجربو او هغه ماحول سره چې ده په کې هنري بیان پیل کړی پوره معلومات نه لرم.زه دهغه انګار په باب معلومات نه لرم چې ده دخپل شعردنغري اور پرې بل کړی دی،خو هغه څه چې اوس لولم.هر شعر،هرغزل،هراواز اوهره قصیده ما لوستلو او زما قلم لیکلوته هڅوي.کیدای شي په رښتیا په دې غرونوکې دپیرو،پیرو نه کوم ویده کړل شوی سندرمارده سره یاري کوي.کیدای شي په رښتیا دده دروح ګرنګ له نا بیان شویو سندرو اونغمونه ډک وي اوغیبي سندرمارپه کرار کرارهغه ورته دشعر په توګه بیانوي:

روح مې لوی ګړنګ دی،دنغمو له ازانګو نه ډک
ښایي کوم غیبي لوی سندرمار ته مخامخ یمه

مګر دی دیوه مومن اورښتیني معتقد په توګه بیرته خپل خالق ته ورګرځي،خو په دې ګرځیداکې خپل پښتني ماحول نه هیروي:

خدای مې ناست په زړه کې دی،باران پرګلو ځي راځي
ټول ټپه ټپه یم،یکه زار ته مخامخ یمه

لطیف بهاند

خو په همدې غزل کې دی خپل ټول قدرت ته حیرانیږي او دا حیراني تر دې رسیږي چې حتی نه پوهیږي چې دده سندربول او دده دشعر سندریز توان له څه دی:

وو ایه کاروانه موکل دکوم یو راګ یمه ؟

تار مې له رباب سره، ستار ته مخامخ یمه

که دا خبره ومنو چې هرشعر دهغه دویونکي شاعردشخصیت تجلا دی.هر شاعر په خپل شعر کې خپله هستي تجربه کوي.البته زموږ اکثره شاعران هغه دالهي له عظمت نه پیل کوي.بیا ځان ته راځي.هغه نه وروسته ماحول ،انسان ،بیا دهستۍ بې پایه تجربې ته ورتیریږي.هغه په شوق،تلوسې،فصاحت سره په خپله دیوي رڼې چینې په شان راخوټیږي:

چې ســـــــــدرې مې راشنې شي له خبرو

پرسپیرو شونډو مې تانده خولګۍ کیږده

او د ګودر اوبو به

راته چمبه وهله، پېغلې شبې

## غزل

بدرنګه زمـانه شــوه ښــکاري لال پــه غشـوولي

دوروځو په پیو ند کې شینکی خال په غشــو ولي

رباب یې پــه زړه وویشت د ښکلا سرود شهید شو

له درده راوتــلی ســراو ټـال پـــه غشــو ولي

شیشه په غشو ولي وژني روح دښــا پـــیـــریـــو

د یوان راپار یدلـــي دي جـــمـال پـــه غشـــوولي

ما ښام یـــې دنـــکـر یـــزو په سروو ینو لمبولی

سبابه اختـــر وژنـــي نـــن هـــلال په غشــوولی

څو ک نه شي یادولای د یار نوم پـه تــرنــم کـــې

دا دور دبتـــانـــودی بـــلال پـــه غشـــوولـــي

دا ټول غشـــي مـــی بیر ته پردې یو ،زړ ګي لګیږي

سهېل په غشـــوولـــي کـــه شـمال په غشوولي

لطیف بهاند

تیارو شپو د سبا پر کاروان بیا کـړی یـرغــــل دی
له ستړیــو لارویــو نـــه مشـــال په غشــــو ولي

کاروانه دخبرو له بیابانه کوچ په کار دی
رادرومه چې د مستو سندرمارو منځ کې کېنو

په پښتو شعر کې د طبیعت انځور،د طبیعت سره دشاعر اړیکي ددغو انځورونو پښتني تصویرونه،ما په خپله بله څېړنه کې چې د سلیمان لایق ،د چونغر په ترانو مې کړې وه خپاره کړې دي،نو څکه دلته

ځې

وطن کې مې دغم نغارې چا وډنـــــــــګولې
کاروان خو پر ځای پرېږده کوچېدلي چنارونه

د پیرمحمد کاروان شعرونه

!د پښتو تکړه سندرغاړې قمرګلې ته

ګلونو ! په جرګه ورشئ بلبله مروره
اواز یې اوښکې-اوښکې قمرګله مروره

دا داسې یو اواز ته وا جادو نه راوتلی
د غرونو د قُمرې له کوکو نه راوتلی
له زړه نه که د شاتو له کندو نه راوتلی
دا چا رانجه ورکړې، چې غزله مروره
اواز یې اوښکې اوښکې قمرګله مروره

لطیف بهاند

اواز د قمرګلې په اوبو کې ګلا بونه
ګډېږي په نرګسو په شبو کې ګلا بونه
شیخانو ته موسکي شي په تسبو کې ګلا بونه
له خپل جنتي غږ نه نو بیا څله مروره
اواز یې اوښکې- اوښکې قمرګله مروره
نیلی د نغمو زین راوله، راشه په رکاب کې
کړه جوړه هنګامه په سرینده او په رباب کې
ورګډه په څپو شه د سندرو په دریاب کې
موسکۍ شه، که څه هم یې په زړ ځله مروره
اواز یې اوښکې اوښکې قمرګله مروره
.ل کال، خیرخانه مېنه17_12_1382

پښتو پښتو
ډکه د جمال او د جلال غرنۍ ژبه ده
وایې وره پښتو د مستانه موسیقۍ ژبه ده
ډول سره چې غبرګه شي ګډا ګډا ګډا شي نو
چوپو ګړنګونو کې یو شور شي او غوغا شي نو
والوزي یو سېل شي د مرغیو په هوا شي نو
څنې د ښښترو ورته ګډې په شغا شي نو
درد لري د مینې د شپونکې د شپېلۍ ژبه ده
خرپ د سپینې تورې چې په برم او په پرتم کې شي
حسن په درخو کې شي سرشاره په ادم کې شي
ناڅاپه نغمه شي د رباب په زیروبم کې شي
چیغه شي ټپه په خوبولي شومه دم کې شي
ستوري ورته غوږ دي د اسمان د سپوږمۍ ژبه ده
مسته په څپو څپو او مسته له سېلابه ده
ښکاري راوتلې د سندرو له دریابه ده
ته وا بلبلانو را ایستلې له کتابه ده

لطیف بهاند

واه په تغزل کې ښایستوکې تر ګلابه ده
جوړه ترې لنډۍ شي د درنې ملالۍ ژبه ده
سر باندې يې لمر او سپوږمۍ کېښې دغره څوکه شي
کله هم د غرونو د باغي زرکانو کوکه شي
ګوري چې سپېره غليم تېره د تورې څوکه شي
زلفې د معشوق انځوروي د قلم نوکه شي
جار د شرنګېدلې دریابې شاعرۍ ژبه ده
هر څو که د غرونو د اوبو غوندې بې رنګه ده
ښنې یې پر اغزو اېښې دي سرې وينې ګلرنګه ده
پاس د ګل منار ته ورختلې دنګه دنګه ده
ډېره خوږ اروا ده ته وا پېغله غنمرنګه ده
جار يې شم کاروانه د خوږې ښاپېرۍ ژبه ده
کابل خیرخانه مېنه 28-4-2005

ښکليه ځاروان مې شه کاروان به دې شم

له ځانه سترې يمه ځان به دې شم
سپينه کوتره شه پرواز را وکړه
غيږ راکوه شينکی اسمان به دې شم
لوله مې تل په ترنم ،ترنم
غزل، غزل يمه ديوان به دې شم
يو تږی ګل شه انتظار مې وکړه
زه راورېږمه باران به دې شمه
رخش دارو امې درته زين ولاړ دی
راشه رستم مې شه داستان به دې شم
ښکاري خونه يم هوسۍ ځله تښتې؟
چېرته به درومې بيابان به دې شم

لطيف بهاند

راشه جنت مې شه جنت به دې شم
راشه ایمان مې شه ایمان به دې شم
راشه مېلمه مې شه مېلمه به دې شم
راشه مېزبان مې شه مېزبان به دې شم
د زړه له غوټو مې غمې جوړه وه
راشه د سرو غمیو کان به دې شم

## غزل

شاعران یو په نغمو یادوو خدای
ښکلي ګورو ، په لېمو یادوو خدای
خدای بلد کړو د توبو په ماتولو
غړپ کوو له پېمانو یادوو خدای
شېخ د کاڼو په تسپو یادوي خدای
موږ د اوښکو په تسپو یادوو خدای
د ژوندون په ګوتو برګی تسپې وایو
هم په ورځو هم په شپو یادوو خدای
یم هیرجن چې هیر مې نه شي راته خانده
ستا له شونډو اننګو یادوو خدای
ایا تونه دې په سترګو کې موسکې دي
ستا له سترګو پښتنو یادوو خدای
موږ کاروان د لېونو ازادي غواړو
په کړۍ د زولنو یادوو خدای

## غزل

په زړه مې ولې راوريږي څه باران خو نه يې
هسې مې درد راويښوي ګرانه درمان خو نه يې
د مخ په پاڼه به دې څه خوږه غزله ليک وي
سپينه کتابه يادوم دې دومره ګران خو نه يې
د خيال هُد هُد دې راته ډېر ډېر پيغامونه راوړي
دا مې خطا وه چې ويل مې سليمان خو نه يې
ما به بې وخته لېوني کړې په اغزو به ګرځم
غېږ به رانه کړې ښکليه باغه بيابان خو نه يې
د ژوند د وچ ساحل په مخ مې لمدې شونډې نه ږدې
شنه سمندره زه دې څه کړمه توپان خو نه يې
د نور په غشو مې له هسک نه په لېمو کې ولې
نه راځې ستوری د اسمان شوې مهربان خو نه يې
ښکليه سالار مې که د عشق د منزلونو نه کړې
بيا راته وايه چې درواغ وايې کاروان خو نه يې

## موري

موري موري تږی يم په لپه کې اوبه راکه
زړه دې رانه وړی دی بې زړه يمه لږ زړه راکه
بيا درته ماشوم شومه نکريزې مې په لاس کېږده
خوله زما ترخه ده هله يو موټی خواږه راکه
ما د ژوند په لوبه کې ګرېوان تر لمن وشلاوه
تار په ستن کې واچوه تنۍ د ګرېوانه راکه
غره ته يم راغلی چې د غم په لوی زړه وژاړم
ډنډ مې د زړه ډب دی د رڼو اوښکو وياله راکه
سرته مې زنګون کېږده ويښتو کې مې وهه ګوتې
خوب نه راځي، خوب راوله، خوب کې الوته راکه

لطيف بهاند

اخوا چنار، په برم ولاړ یو شین چنار، یو ښکلی چنار، چنار لاندې، چنار ډډې

ښکلیه سالار کـه مې د عشق د منزلونو نه کړلې
بیا راته وایه چې درواغ وایې کــاروان خــو نه یې

که ووایو چې شعر د انسانی روان تجلی او نا رسېدلو دارمانونو په وړاندې تخیلی غبرګون دا به هومره له رښتیا نه لرې خبره نه وي.

شهید غزل،نازک غزل،دشونډو شعر،د درد غزل،دغزل غوټۍ،دغزل لاسونه،خوږې غزلې،دغزلونو سمندر،د غزلو زرینه ژبه،په هنداره کې ناسته غزلبوله،بې غزلو زمانه،دخامو غزلونو کاروان،

## د کاروان (( چنار خبرې کوي )) د سولې جایزه وګټله

حنان حبیبزی

((چنار خبرې کوي )). د افغانستان د وتلي شاعر پیرمحمد کاروان هغه شهکار دی چې د سولې جایزه یې وګټله.

دغه جایزه د غبرګولي د میاشتې پر دیرشمه نېټه( د جون۲۱ ) چې د سولې په نوم نومول شوې وه د افغانستان د مدني ټولنې له خوا ښاغلي کاروان ته ورکړل شوه.

د کاروان چنار خبرې کوي شعري غونډ د یوسل او دوه څلویښت اثارو له منځه دغه جایزه په کابل کې خپله کړه.

دغه جایزه ښاغلي کاروان ته د لسګونو افغان شاعرانو او لیکوالانو په وړاندې د یوې غونډې په ترخ کې ورکړل شوه.

د پښتو ادبیاتو په برخه کې وتلي لیکوال عبدالله بختاني هم د خپل اثر (( سوله او اسلام د اسلام په رڼا کې )) ورته جایزه واخیسته.

لطیف بهاند

خو دا لومړی ځل نه دی چې د پیر محمد کاروان اثار جایزه ګټي بلکې له دې وړاندې هم په جرمني کې میشت د افغانستان د کولتوري ودې ټولنې د ښاغلي کاروان (( د ښاپیری ورغوي )) ته چې دده څلورم اثر دی د سرو زرو مډال ورکړ.

ښاغلي کاروان ددغې جایزې له ترلاسه کولو څخه وروسته د بي بي سي پښتو ویبپاڼې ته وویل چې ده ته یې اثار د معشوقې حیثیت لري او دومره پرې ګران دي لکه پر یورښتني عاشق چې معشوقه ګرانه وي. دی وایي په خپلو اثارو یې زړه ته تسلي ورکوي.

د کاروان اثار د (( ښاپیری ورغوی ، له ماښامه تر ماښامه او چنار خبرې کوي )) شعري ټولګې، (( غره ته روان سړی او له نرګسه تر نرګسه )) د لنډو کیسو ټولګې دي چې له چاپه راوتلي دي او د لوستونکو تر منځ یې ډیر شهرت پیدا کړی دی.

د ښاغلي کاروان ځینې اثار دوه ځلې هم چاپ شوي دي.

د کاروان اثار و په اړه خبرې کو نو ارمرو مو پام له انسانیت سره د مینې کیسو ته اوړي. د مینې هغه کیسې چې له رښتنولۍ څخه ډکې دي.

هغه ریالیستکې هنري کیسې چې کله د شعر په جامه پسولل شوي او کله د لنډو کیسو په بڼه.

دا هر څه د هغې سپیځلې مینې راز دی چې لیکوال په کې د خپلې مینې د موندلو هڅه کوي.

بیلتون چې کله د انسان زړه وځپي ، له ژونده یې تر مرګه پورې دردوي. دا د انساني سفر دبهیر یوه بیلګه دی.

د کاروان کیسې او شعرونه ددغسې انځورنو ښې بیلګې دي چې ډیرې تجربې یې ښایي خپله لیکوال هم په شخصي ژوند کې زغملې وي.

لطیف بهاند

ځکه عاطفي ليکوالان هغه پيښې د هنر په جامه پسولي او له نورو سره يې شريکوي چې ده پخپل شخصي ژوند کې لږ تر لږه احساس کړې وې.

کيدی شي همدا لامل وي چې د کاروان اثار لکه د هنر ښاپيری د نورو هنري هغو تر منځ ډير ځليدلي دي او پر هر لوستونکي ځانګړی اغيز شيندي



لطيف بهاند